شاهين بونېرے

# ديوال سره خبرې


| | |
|---|---|
| تابيا | همايون مسعود، مينګوره، سوات |
| پروف | عطاء الرحمان عطاء، احسان يوسفزے |
| کمپوزنګ | شاهين بونېرے |
| مخپاڼه | رفعت ختک |
| چاپ کال | اکتوبر، 2016ء |
| بيعه | 300 کلدارې |

**عامر پرنټ اينډ پبلشرز، پېښور**

**aamirprint2010@gmail.com**

**0300-9019499**

د موندلو درک

يونيورسټي بک ايجنسي، خېبر بازار پېښور

د رابطې لپاره

سينټر فار فيس اينډ کلچرل سټډيز، پېښور

## ليکلـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــر

# په "دېوال سره خبرې" يو سرسري نظر

هره کړې، هريو دم، مونږ په خپل ذات کښې دننه راخوټکيدلے تحريک قتل کوو. د زړهٔ او روح دننه د وجدان او احساساتو په جوش وهلې لاوې سره واوره اچوو او کنګل کوو ئې ـــ ځکه نو چې کله هم مونږ د چا د داسې ليک سره مخامخ شو چې په هغې کښې مونږ د خپل زړهٔ په تل کښې د ورک شوي شور انګې تر غوږو کړو نو زړهٔ مو نرے نرے، خوږ خوږ دړ شورو کړي چې دا خو چورلټ زما په ژبه ګويا دے. دا خو زما سرينده ده چې دے ئې راته غږوي، زما خپله نا وئيلې قيصه ده چې دے ئې راته په خوند او رنګ بيانوي ـــ هاغه قيصه، چې د خپلې بې يقينۍ په وجه ورته ما د ټکو تورو زرينه لباده نهٔ وه اغستولې او رانه د لاشعور په بې کرانه وسعتونو کښې ورکه شوې وه. دريغه کهٔ د خپلې بې يقينۍ په مرمرينه مرۍ ما چاړهٔ نهٔ وے راښکلې نو دغه تعلي، دغه امتياز زما برخه ګرځيدلې شوه.

د شاهين بونېرې د مسودې "دېوال سره خبرې" په لوستلو زهٔ هم د دغه احساساتو او کېفيت سره دوچار وم او يقيناً هم داسې به وه چې انسان په خپل سرشت کښې د يوې سرچينې او د يوې منبع نه مظهر شوے دے. دے کهٔ د کائنات د ټولو نه په لرې ستورې استوګنه ولې نهٔ کوي خو په خپلو داخلي او خارجي احساساتو او جذباتو کښې به هم‌شه يک رنګي لري ـــ د ټولو اواز د يو محراب نه راووځي. "دېوال سره خبرې" هم د هاغه محسوساتو او جذباتو د بحرِ بېکران قيصه ده چې په مونږ کښې دننه اودهٔ شاعرانو، اديبانو او نورو ليکوالانو د خپلې بې يقينۍ په سبب لا د قلم څوکې ته نهٔ ده سپارلې.

شاهين بونېرے د خپل کتاب "دپوال سره خبرې" پهٔ ابتدائي سطورو کښې د خپل کلي او بيا د خپل ځان پهٔ حقله ليکي چې:

«د کلي نه يو وړوکے سړک راتېرشوے دے چې دواړه اړخ ته ئې د خودرو پلواړو او نورو ځنګلي ګلونو بوټي دي. کله چې به د امنور هائي سکول ته د ملګرو سره تلم نو د دغه ګلونو خوشبو به د ژوند د ښائست پېغام را کولو. د سکول د ريسس پهٔ وخت کښې به هم اکثر د ملګرو نه يواځې د غرهٔ پهٔ لمن کښې ناست وم. خبر نهٔ يم خو د غرهٔ لمن به را ته د قرار احساس را کولو. يواځې والے زما پهٔ روح کښې ؤ.»

د شاهين بونېري سفر هم د فطرت د دغه ارتې او فراخې غېږې نه او د ګلونو له مينځه شورو کېږي او د تنهاپسندۍ افسون ورکښې د استغراق جوهر پېدا کوي. هغه دشلبانړۍ د هسکو غرونو د شپونکي د شپېلۍ موسيقي او د ګلونو رنګ او خوشبو پهٔ خپل ذات کښې، پهٔ خپل روح او زړهٔ کښې تحليل کوي او خپل اندرون پرې ښائسته کوي. بيا د تنها پسندۍ پهٔ موجب پهٔ هغهٔ کښې د استغراق ماده غزوني کوي او پهٔ غرېدلو سترګو ويني او قائل کېږي چې د فطرت د سخا نه پهٔ ډکه فلسفه کښې د نخښترو دنګو څوګرو ته پهٔ سپلۍ برترې او فوقيت نشته. د ګلونو خوشبو چې د سحر باد اوچې ګياه ته يوسي نو د خپل شرف اظهار پرې نهٔ کوي. د سباوون د نمر پلوشې پهٔ غريب او بادار يو شان پرېوځي او د هېڅ قسمه امتياز پکښې نهٔ کوي. هم دغه وجه ده چې د شاهين بونېري واړه ليکونه، خوا کهٔ نثر دے او کهٔ شعر، هم د دغه پاکو او سپېڅلو جذبو ترجماني کوي.

ځکه نو هغه د مينې، د ښائست، د دنګو چينارونو او د هغې پهٔ غېږ کښې د سرو او زېړو ګلونو د رواني چينو، د ګلونو، د خوشبو او د انسان د عظمت نغمه زن ښکاري او

پهٔ کُلي توګه پهٔ انسان د انسان د لاسه پهٔ ظلم او زياتي کولو نالانه دے.
د دوي نثري ليکونه د خپل اولس او پهٔ دې اولس د تېرو څلوېښتو کالو راهسې د روان زور او زياتي، د دوي د حقونو پائمالي، د دوي پهٔ خپلو وسيلو د بل د اختيار مقدمه د يو پوهه او زيرک مبارز پهٔ طور پهٔ خوش اسلوبۍ سره نمايان کوي او د خپل وګړي د شعور د بېدارۍ هڅې کوي. پښتون شاندار تاريخ لري او د نن دور ګنګس شوي پښتون ته د خپلو منورو اتلانو د يادګېرنې حق ادا کوي.
شاهين بونېرے د ژورې مشاهدې څښتن دے. هر څومره کهٔ مادي طور دے د خپل جنت برين، د سردرو د وطن نه ډېر لرې د غېرو پهٔ ديار کښې ژوند کوي خو پهٔ روحاني او عملي توګه د هغهٔ ټول خيال او سوچ د خپل اولس او قام د سوکالۍ او پرمختګ د لا رو برخېره کولو د يومحور نه تاوېږي . د "چيک ريپبلک" پهٔ مثال کښې هغوي پښتون پهٔ دې خبره پوهول غواړي چې ژبه د قام شناخت دے او يو قام تر هاغه د کاميابۍ او کامرانۍ سره نهٔ شي همکنار کېدلے تر څو پورې چې ئې خپله مورنۍ ژبه نهٔ وي ژوندۍ کړې. دے کهٔ پهٔ شمېر کښې د مليونو پهٔ تعداد کښې ولې نهٔ وي خو تر هاغه به دے د بل تابع وي او د دهٔ وسائل به نورو خلقو ولجه کړې وي. شاهين شاکي دے چې پښتون د وخت پهٔ سېلاب کښې غېر شعوري طور دومره اوبهيولے شو چې هاغه قام چې پهٔ ټوله نړۍ کښې ئې د خپل وسعت او مېلمه دوستۍ د پاره لوے نوم لرلو، اوس د دهٔ بچي د دهٔ وطن ته راغلي سېلګري پهٔ تيرو وولي. کرائسس قامي مشران وزېږوي خو د پښتون وګړي د بد بختۍ به څهٔ تپوس کوې، نيم پښتانهٔ د خپل سود او زيان نه ناخبر د غېرو کېمپونو پسې روان دي منډې وهي او باقي نيم چې څهٔ لږ ډېر ادراک لري او پهٔ خپلې بدې برخې غمژن د قامي

مشرانو د زلفو ئې ځانونه اسیر کړي دي، هغوي ته ئې ځان سپارلے دے. دغه موروثي مشران هم د حالاتو په غولی کښې ګېر د خپل قام د پاره د خالي او بې معنو نعرونه علاوه نوره څهٔ واضحه لائحه عمل نهٔ لري.

شاهین بونېرے پهٔ ژبه کامل قدرت او دسترس لري. نثر ئې خوږ روان دے او د یوسفزی والا او افغانستان پهٔ امتزاج رنګ اسلوب ئې لکه د بودی د ټال زړهٔ راښکونکي رنګونه لري چې ډېر زر لوستونکے پهٔ خپل حصار کښې واخلي. پهٔ لنډو ټکو کښې دومره به و وایم چې "دپوال سره خبرې" د شاهین بونېري د سفر هغه داستان دے، هاغه خودنوشت دے چې د باران لهٔ کاروان څنې د یو بې درکه شوي څاڅکي نه شورو کېږي. پهٔ دغه سفر کښې د صدف پهٔ لړمون کښې خپل ځان ځائے کوي او انجام کار تري نه یوه ناویاته ملغلره جوړېږي

زما دعا ده چې الله پاک د دوي کاوش له قبولیت عام ورکړي.

پهٔ ډېره مینه او درنښت

**همایون مسعود**

مینګوره، سوات

# د شاهين د دېوال سره خبرې: ملغلرې

د شاهين بونېرې ليکونه داسې دي لکه زرغونه. د زرغونې خبرې په تول پوره او د پوهې ډکې وي. هغه د کلي اولس، غم ښادۍ او رسم رواج په چل پوهېدله. زرغونه په ډول سينګار مئينه وه او په سرڅنه کښې د کلي د نورو ټولو پېغلو ښخه مېرنۍ وه. د زرغونې په يو کار کښې به چُګس نهٔ وهٔ. د هغې د نغرې ښخه د وتلي پخلي او د هغې د غوړولي پوزي په انداز به تل په کنه ګوره کښې خبرې کېدلې. د کلي د هرې مور به دا ارمان وهٔ چې زرغونه خپل ځوي له وغواړي. زما به تل تلوسه وه چې پرې رويه او سليقه منده زرغونه به نن ما زيګر کودر ته ځي او کهٔ نهٔ. ما چې د کله راسې د شاهين ليکونه لوستل شورو کړي دي نو زهٔ د هغهٔ د بل ليک په تلوسه کښې اوسم ـــ زهٔ پرې مئين شوے يم.

ما ته د هغهٔ په هر ليک کښې زرغونه ښکارې. زما په نظر کښې شاهين د دې عصر د پښتو ادب په کلبڼ کښې د جديدو تقاضو ښخه خبر يو ويښ دانشور دے. د هغهٔ هر ليک لکه د زرغونې سينګار شوے وي. داسې ښکارې لکه د شاهين خبرې چې رقص کوي، رباب غږوي او لکه د زرغونې ټي هر وخت په لاسو نکريزې، په شونډو دنداسه او په څنو کښې ولونه اړولي وي.

شاهين لنډه خو پوره او کره خبره کوي. هغه د عالميت په چوکاټ کښې د خپل علاقائيت ښېړنه کوي او هغه په خپل هر ليک کښې تل د مزي بل سر ته د رڼا پلو ته يون کوي. دا توکي د نن په بې کچه (تېزه) زمانه کښې يو لوستونکے ځان ته

راحصاروي شي.

د شاهين دې کتاب "دېوال سره خبرې" ځينې ليکونو زهٔ ډېر رالړزولے يم او ما ورته بې اختياره اوښکې بهيولې دي. د مثال په توګه ( جاپانے سپلګرے، تخت بهائي او په هغهٔ د کانو باران) او (د پېراک قلعه، شنې سترګې او مورنۍ ژبه).

د شاهين د ليک کمال دا دے چې د دغه جذباتي لړزان سره سره هغه د لوستونکي په ذهن کښې ډېر په چل چل کښې څهٔ سوالونه پيدا کوي. د انسان، مينې، وطن، ژبې او قام په حقله د يو لوستونکي په ذهن کښې سوال پيدا کيږي چې وطن کښې امن ولې نشته؟ د وطن خلق لکه د نورو قامونو د هنر، پوهې او زدکړو مرکزونه ولې نهٔ لري او يا دوي ته لکه د نورې نړۍ په رنګه د وطن د وسيلو نه د ګټې کولو سې لارې ولې نهٔ دي معلومې؟ دغه پوښتنې راپورته کول يا ورته د خپلې خاورې د بچي پام راګرزول تر ټولو لوے کمال دے ـــ يو انقلابي کمال.

زما په فکر يو ليکونکے تر هغې سم او قوي ليک نهٔ شي کولے، تر څو چې هغه په خپله ژبه، خپل قام، خپله خاوره، خپل کلتوراو تاريخ پوره پوهه نهٔ وي. شاهين نهٔ يواځې دا چې د خپل وطن په خلقو او خاوره مئين دے او په خبرو ئې پوهه دے بلکې د هغهٔ په زړهٔ کښې د دغه وطن د اوسنيو ناکرديو څخه د وتلو د ارمان ډيوه هم بله ده.

شاهين د جديد عصر پښتون دانشور دے. هغه نهٔ خو د مبالغو څخه په ډکو تاريخي داستانونو خپل لوستونکے تېر باسي او نهٔ ئې د خپلې ذهني (ناروغتيا) د لاسه د سرابونو په کاروبار اخته کوي. د سرابونو کار او د زهني ناروغتيا مطلب دا دے چې ما اکثره لوستلي دي چې ځان ته د پوهانو ويونکو د ليکونو د مبالغو حد دا وي چې اکثره ليکونه ئې فينټسيز يا ذهني اختراع وي. د خپل لاس په

کوته په هوا روان جهازونه راپرېباسي خو په حقیقت کښې د خپلې قولبې د جغ په جوغندې کښې پترے نهٔ شي بدلولے. په خبرو تل خپل قام یا خو ژړولو یا وراني ته راپارولو ته کهٔ څوک د ډېې او قام خدمت وائي نو په اوسني دور کښې به ئې ورسره څوک هم ونهٔ مني. زما په نظر کښې د قام دغه شان لیکونکو قام او وطن په لاشعوري توګه زیاني کړي دي.
شاهین چې د خپل وطن سره مینه کوي نو هسې نغارې ورته نهٔ وهي ـــ د وطن په سینه کښې د پټو خزانو درک ورته په منګل کښېږدي. هغه چې سوات ته د سوئټزرلېنډ څخه زیاته ښائسته سیمه وائي نو پوهه دے چې د سوات د خاورې د پېرېو راهسې تاریخي ارزښت د چم ګاونډ د وطنونو نه واخله تر د یونان د زوړ تهذیبي ژوند پورې رسي. فطرت، حسن، پوهه او زغم دا د سوات تاریخ وهٔ او د شاهین دا خبره بیخي سمه ده ـــ سوات د سوئټزرلېنډ نه زیات ښکلے دے خو هغه دا خبره تش د حسن په داستان یا د دې د اوسني تاراج شوي شکل په مرثیه نهٔ تماموي ـــ هغه خپل قام ته د مُلائیت په دام کښې د ښکېل کېدلو رنځ او ددې رنځ د درملنې چل ورښائي. شاهین خپل او د لوستونکي وخت په فکري مغالطه او کنکس شوي تصور نهٔ دے خراب کړے نو ځکه زهٔ وایم چې شاهین په "دېوال سره خبرې" کښې د عصر د نړیوال معیار ادب لیکلے دے.
ما چې د شاهین دا کتاب لوستلو نو ما فکر کوهٔ چې د دې کتاب صنف څهٔ دے؟ ځکه چې ما ته په ډېرو لیکونو کښې د سفرنامې منظر کشي، د تاریخ پس منظر او اثرات، د رپورتاژ طرزِ بیان، د فکري تحریر سیاسي بیانیه، د کالم تازه والے او اسانتیا، د افسانې تجسس او د فلسفې ژورتیا او په ځینو لیکونو کښې د شعریت جمالي حسن محسوسېدلو. حقیقت دا دے چې په پښتو کښې د ادب او د هغې د صنف د تعین کار د نړیوال ادب څخه مستعار اخستل شوے دے

ـــ يوائې په شعر کښې د صنف تعين سوچه دے. د شاهين په دې ليکونو کښې د نثري او نظمي ادب دې کوشېر شوي شکل يا امتزاج ته زهٔ د "ملغلرو" نامه ورکوم.

ملغلرې بايد اوس په پښتو ادب کښې د يو نوي صنف په توګه و منل شي. زمونږ د قام او وطن د کړمو، بې وزلېو، بې وسيو خبره بايد اوس په سوچه پښتون رومانوي انداز، رنه ساده او صفا ژبه کښې وشي او د دې په علت ګوته کېښودل شي او هم په دغه انداز کښې د وطن د وسائلو. په دې کښې د سم وېش او په دې د هنر په چل ليکونه وشي. لکه د ملغلرو سوچه ليکونه ـــ لکه د زرغونې سينګار شوي ليکونه.

رحمان بونېر ے
واشنګټن ډي سي، امريکه

# خبرې لنډې لنډې وايه!

مونږ ټول مزل کوو خو ځينې خلق داسې وي چې يا خو منزل ته ورسي او يا د مزل په لارو کښې ورک شي، فنا شي. ځينې داسې هم وي چې چرته د ژوند په صحرا کښې ديو ې اونې سيورے وګوري نو هم هلته څادر خور کړي، کښېني او هره ورځ ديو نمر دراختو او پرېوتو ننداره کوي. په يو منظر کښې ورک شي. د يو اميد، ديو ارمان سندره وائي او يا ديو غم او يو ې سودا په تيارو کښې د خپل اغاز او انجام فکرونه کوي.

خو څوک ټول عمر مزل کوي، لټون کوي، نوي ستورې ګوري، نوي مخونه ګوري، نوي ګلونه او نوي سحرونه ګوري. د داسې خلقو مزل نۀ ختميږي ــ د داسې خلقو لپاره مزل د منزل نه ډېر مهم او ډېر زړۀ راښکونکے وي.

څوک يو څو قدمه واخلي، تر تا درشي
د چا پښې په مزل ستړې شي، ناکام شي

زما مزل د پښتونخوا د ښائسته او ګلورينې سيمې بونېر په شلبانډې کلي کښې هاغه وخت پېل شو، کله چې ما په دې دنيا کښې سترګې وغړولې. د خپل کلي د ډېرو هلکانو په شان راته د خپل پېداوښت صحيح نېټه نۀ ده معلومه ــ ځکه چې په کليوالو سيمو کښې هغه وخت د پېداوښت د نېټې ليکلو رواج ډېر عام نۀ وۀ. زمونږ د کلي د پرائمرۍ سکول هېډماسټر، مشال استاذ راله د فرورۍ اتلسمه نېټه او کال ۱۹۷۸م ليکلے دے او ما قبول کړے دے.

په وړوکوالي کښې راته د خپل کچه کور هغه کوټه ياده ده چې په ژمي کښې د اور

بلولو لهٔ کبله ئې ټول دېوالونه په لوګو تور شوي وو. د کلي چينې او چينار د کلي د ماشومانو او ځوانانو د لوبو او د تفريح ځائے وهٔ. د دې ځايه به د کلي ښځو په منګو کښې اوبهٔ وړلې او کله کله به ئې خپل بچي هم په غېږه کړي وو.
زمونږ په کلي کښې چې کله د پائپونو په وسيله اوبهٔ د چينو نه د غر په سر جوړې شوې ټېنکۍ ته د خېړولو او بيا د نلکو په وسيله د کلي کورونو ته د رسولو انتظام وکړے شو نو د ګودر ضرورت هم پاتې نهٔ شو. هغه چا چې به سحر او مازيګر ټينکۍ نه اوبهٔ راپرېښودې، غفور باچا نوم ئې دے او زما دېر قدرمن مشر دے. د ګودر ضرورت خو ختم شوے وهٔ خو ولې د ګودر رومانس اوس هم د کلي د جينکو په زړونو کښې ژوندے وهٔ. د اختر او شوقدر په موقعو به جينکو د کوټو په سرونو د خانک د اواز سره دا سندره هم وئيله چې:

"زهٔ کشمالې اوبهٔ کومه

د ميا کلي غفوره!

اوبهٔ راپرېږده!"

د کلي نه يو وړوکے سړک راتېر شوے دے چې دواړه اړخ ته ئې د خودرو پلواړو او نورو ځنګلي ګلونو بوټي دي. کله چې به د امنور هائي سکول ته د ملګرو سره تلم نو د دغه ګلونو خوشبو به د ژوند د ښائست پېغام را کولو. د سکول د ريسس په وخت کښې به هم اکثر د ملګرو نه يواځې د غرهٔ په لمن کښې ناست وم. خبر نهٔ يم چې ولې، خو د غرهٔ لمن به راته د قرار احساس را کولو. يواځې والے زما په روح کښې وهٔ.
ژوند د چينې او چينار نه ګېر چاپېره ګرځېدو ـــ د غرونو په لمنو کښې ئې د درد او د احساس د شپېلۍ شخه وتلې وړومبۍ سندرې اورېدې او د کلي په پُولو پټو او ورشوګانو کښې د غانټول په ګلونو کښې د يوې خيالي ليلا په لټون کښې

ورک لېوني کړ ځېدو.

زمونږ د کلي ګېرچاپېره غرونه او د پُولو پټو لړی دي. چې لږ رالوی شوم نو د غرونو په لمن کښې د کرکنو او کرور و شوکول مو يوه مشغله وګرځېده. غرمه به مو د اينځر او توتانو په اونو کښې تېرېده. غريبي وه، ګرېوانونه به مو شلېدلي وو او په پښو به مو پېزار هم نهٔ وهٔ خو اوس چې فکر کوم نو دغه راته د خپل ژوند تر ټولو خوشحاله موده ښکاره شي.

انسان هسې هم د خپل مزاج په حواله نوستېلجيک دے. په تېرو وختونو پسې ډېر خفه کېږي خو نهٔ، دغه په ريښتيا ډېر خوشحاله ژوند وهٔ، ځکه چې فطرت ته نزدې وهٔ، ښائست او معصوميت ته نزدې وهٔ.

د بونېر د تورو غرونو په لمنو کښې پېل شوے دغه مزل تر پښتنو د لوے تاريخي، کلتوري او اقتصادي مرکز پېښور راوغزېد. د اسلاميه کالج په پُرکېفه فضا کښې د ژوند او ښائست د نوو معانو سره بلد شو ـــ د چترال تر اټکه د پښتنو په غرونو، سيندونو، کلو، بانډو او ښارونو راتېر شو ـــ او بيا وخت او تقدير تر مينځني ختيځ،اروپا او امريکې د ځان سره د يو نهٔ هېريدونکي ملګري په شان بوتلو.

ما چې څهٔ ليکلي دي، د دغه مزل هاغه ياداشتونه او قيصې دي چې زمانه د ژوند په پُرشوره قيامتونو کښې هم نهٔ دي هېرې شوې. دا يادونه وخت په وخت زما د ذهن په پرده لکه د فلم د منظرونو او کردارونو په بيا بيا راڅرګندېږي ـــ کله مې په سترګو کښې ولېږي او کله مې په زړهٔ کښې لکه د څريکو د خپل وجود احساس خپور کړي.

دا زما د روح ټوټې دي ـــ زما د وجدان سپرغۍ دي ـــ زما د فکر سيورې دي ـــ څهٔ تت دي، څهٔ روښانه دي ـــ څهٔ غمګين دي، څهٔ رنګين دي.

دا قیصې د ژوند په مزل کښې د بېلا بېلو پړاوونو قیصې دي.
مخکښې د دې نه چې دا هر څهٔ رانه د وخت په چپاوونو کښې لاهو شي، تاسو ته ئې کول غواړم ــــ ستاسو سره ئې شریکول غواړم.
په پائې کښې د خپل قدرمن مشر همایون مسعود د زړهٔ له تله مننه کوم چې دا ټوله مسوده ئې ولوسته، سمه ئې کړه او ګام په ګام ئې زما ډاډګیرنه وکړه. د قدرمن رفعت خټک صاحب ډېره مننه چې د دې کتاب ټائټل ئې جوړ کړو او زما لېونتوبونه ئې د خپل هنر او فکر په رنګونو ښائسته کړل. د پښتو د نوموړي شاعر ممتاز اورکزي او خوږو ملګرو رحمان بونېري او حیات روغاني د ډاډګیرنې ممنون یم چې وخت ئې وویستو او زما په دې ګډو وډو ئې د خپل فکر څرګندونه وکړه او د دې کتاب سرخڼه ئې وکړه. د دې ښاغلو د مرستې نه بغېر زما لپاره دا ممکنه نهٔ وه چې دا لیکونه مې ستاسو مخې ته راوړي وے ــــ کور مو ودان!

شاهین بونېرے

پراګ ــــ د چیک جمهوریت

۱۸ مئی ۲۰۱۶ م

# د سر درو وطن

ملاکنډ یوازې د پښتونخوا د یوې سیمې نوم نهٔ دے، دا د تاریخ د عظمتونو، د ګلونو او فطرت د رنګونو کور دے. څنګه چې ئې لوړ لوړ غرونه د ښائست د اسمان سپینو واورو ته هرکلے وائي، چینې او چینارونه ئې د سپوږمۍ د پلوشو سره راز او نیاز کوي او د غرونو په لمنو کښې ئې کال و سر د ګلونو خوشبویانې خورې وي ـــ دغه شان د دې ځائے د خلقو په زړونو کښې د امن سندرې غزونې کوي او په سترګو کښې ئې د سپرلو د راتګ خوبونه د خپل تعبیر په لټون کښې دي.

د حکومت په کتابونو کښې سوات، بونېر، دیر، شانګله، ملاکنډ او چترال چې راتول شي نو د ملاکنډ ډویژن په نوم یادېږي خو د فطرت د مئینانو لپاره دا د ښائست او مینې د جنت بېلا بېلې برخې دي. هم د دې جنت د سیندونو او چینو په غاړه کښې د پښتنو یو شمېر اولسي او رومانوي داستانونو ژوند موندلے دے. هم د دې جنت په غرونو او ورشوګانو کښې د دې ځائے د مشرانو د ننګ او پښتونولۍ قیصې خورې ورې دي. دلته د کال په هره برخه کښې سپرلي زرغونېږي او سپرلي راټوکېږي. د ملاکنډ، ایلم، امبېلې، مابن، تاجکاه او هندوکش د غرونو په لمنو کښې د قیمتي کانو او قدرتي وسیلو خزانې پټې دي او په هر کاڼي کښې ئې د ژوند ترانې نغمه زنې دي.

دا د کال دوه زره شپږم (۲۰۰٦) خبره ده. زهٔ د خېبر ټيلي ويژن لهٔ خوا د سوات سنټر د سټېشن منېجر پهٔ حېث د سوات مينګورې پهٔ کانجو ټاون شپ کښې ديره شوم. غوښتل مې چې د دې سيمې د تاريخ، کلتور، ټولنيز ژوند، اقتصادي او فطري ښائستونو پهٔ اړه "د سردرو وطن" پهٔ نوم د پروګرامونو لړۍ پېل کړم.

سوات د بدهـ مت پهٔ کتابونو کښې د "سواستو"، "شري واستو" او "اُدهيانه" پهٔ نومونو ياد شوے دے خو دلته زهٔ د تاريخ د پاڼو د کتلو پهٔ ځائے د نن خبره کول غواړم. د نن سندرې او ساندې زوتول غواړم.

سوات ته د تګ نه وړاندې د "کلي پهٔ کلي" د پروګرامونو رېکارډ کولو لپاره د پښتونخوا بېلو بېلو سيمو ته تلے وم او دغلته مې د پښتنو د ټولنيز او کلتوري ژوند بدلېدونکي رنګونه د نزدې نه کتلي وو. پهٔ پښتونخوا وطن کښې ستونزه د وسيلو د نيشتوالي نهٔ، د وسيلو د ټيک انتظام د نيشتوالي ده او د هغې وجه دا ده چې زمونږ پهٔ اولس کښې د اجتماعي شعور او اولسي پرمختيا لپاره پهٔ شريکه د کار کولو روايت لا ډېر پياوړے شوے نهٔ دے.

د ۱۹۹۸م د سرشمېرنې تر مخه پهٔ سوات کښې خواوشا ديارلس لکهه خلق ژوند کوي. پهٔ دوي کښې ډېر يوسفزي دي چې پهٔ شپاړسمه صدۍ عيسوۍ کښې لهٔ افغانستانه راغلي او اباد شوي دي. د کالام او کوهستان پهٔ درو کښې بيا د دارډيک قبيلو خلق ژوند کوي چې توروالي او کالامي ژبې وائي.

کله چې د برطانيې ملکه الزبتهـ دويمه، د سوات د رياست پهٔ دور کښې د والي سوات پهٔ بلنه سوات ته پهٔ دوره راغله او د دې ځائے قدرتي ښکلا او ښائست ئې وليدو نو سوات ورته د ايشيا سوئټزرلېنډ ښکاره شو.

خو ما سوئټزرلېنډ هم ليدلے او سوات هم. دا ټيک ده چې سوئټزرلېنډ هم د رنګونو او خوشبويانو خاوره ده ـــ د غرونو نه ئې د رڼو اوبو نهرونه رابهېږي ـــ

په تالابونو کښې ئې رنګ په رنګ کشتۍ ګرځي ــــ د غرونو په سرونو ئې د ګرمۍ په موسم کښې يخې هواګانې زړهٔ او ذهن ته سکون بخښي او په کليوالو سيمو کښې ئې سويس پيغلې په خپلو رنګارنګ لباسونو کښې داسې ليدلې کېږي لکه د ګلونو په چمن کښې رنګ په رنګ لولکۍ ــــ

خو بيا هم سوئټزرلېنډ د سوات هومره لېونے قدرتي حسن نهٔ لري. په سوات کښې خو په هره دره کښې د رڼو او يخو او بو سيندونه بهيږي، په هرکمر باندې ئې رنګارنګ ګلونه او مېوې رازرغونېږي، د سوات غرونه دنګ دي او بيا په دغه غرونو د نخښترو اونې د اسمان د رفعتونو سره خبرې کوي. بله دا چې د سوات تاريخي ارزښت، دلته د بدهـ مت تاريخي اثار او د دې ځائے د اولس لرغوني کلتوري قدرونه سوات د سوئټزرلېنډ نه په ډېرو حوالو ډېر پياوړے ثابتوي. زهٔ سوات ته د ايشيا سوئټزرلېنډ نهٔ، سوئټزرلېنډ ته د اروپا سوات وايم.

سوات کښې د مڼو، شلتالانو، خوبانو، الوچو، سرو املوکو او ناشپاتو بلها ډېر قسمونه دي. چې څومره ترې په مقامي منډاهۍ کښې خرڅ شي هغه خرڅ شي او نور په باغونو او لارو کوڅو کښې پاتې شي، خراب شي او د خاورو سره خاورې شي. تر اوسه د دې مېوو نه د فائدې اخستو، لکه جوس ويستلو، جام او مارملېډ جوړولو او د دې د اوچولو او په مارکيټ کښې د خرڅولو بندوبست نشته.

دغه شان دلته د شنو زمرودو او نورو يو شمېر قيمتي کاڼو زېرمې دي. د والي سوات مياګل عبدالحق جهانزېب په وخت کښې د دې ټيک انتظام کېدو. رياست ئې ځار کولو او د دې ځائے نه په ترلاسه شوي ټېکس باندې د رياست ادارې چلېدلې. په کال ۱۹۶۹م کښې چې کله رياست په پاکستان کښې شامل شو نو د نورو ګڼ شمېر انتظامي ستونزو سره سره د سوات د قدرتي وسيلو نه د کار او فائدې اخستو عمل هم د کرپشن، نالائقۍ او بې غورۍ ښکار شو. په کال ۲۰۰۸م

کبنې د زمرودو زېرمې د وسله والو طالبانو په لاسو ورغلې او نن سبا حکومت یو شمېر ټېکه دارانو ته حواله کړې دي. د حېرانتیا خبره دا ده چې دا ټېکه داران وائي چې د زمرودو نه ورته د کتې په ځاے تاوان ډېر کېږي.

په سوات کبنې د کارپوهانو سره د خبرو په وخت را ته معلومه شوه چې د سوات د سیند نه د بجلۍ جوړولو داسې پروژې پیل کېدې شي چې خرڅ پرې هم ډېر لږ راځي او بجلي به هم ډېره پیدا کوي.

په داسې غني خاوره غریبي، بې وسي او د ناپوهۍ توري تیارې څهٔ معنا لري؟

# زما قلم او د هغهٔ ټوره

۲ مارچ ۲۰۰۷م:

د ژمي يخې هواګانې په شا کېدو وې. د پښتونخوا په مېداني سيمو کښې ورځې په ګرمېدو وې. زهٔ د مومندو او چارسدې په بريد د هشنغر په يوه سيمه کښې د يو ملګري سره مېلمه وم. بهر ناست وو او د چايو نه مو خوند اخستهٔ. دا داسې ورځې وې چې په سوات کښې د امام ډېرۍ مُلا فضل الله د خپل ايف ايم ريډيو په وسيله د خپلې خوښې د اسلام تبليغ کوهٔ.

جينکۍ دې سکول ته نهٔ ځي!

د پوليو څاڅکي حرام دي!

ښځې دې د کورونو څخه بهر نهٔ راوځي!

ځوانان دې د اسلامي نظام د قائمولو لپاره جهاد ته ځان تيار کړي!

دا داسې خبرې وې چې د هغهٔ د ريډيو له لارې هر سحر او ماښام د څلوېښت مربع کلوميټر په دائره کښې خپرېدې. ښځې خو هسې هم تر کورونو محدودې وې نو د مُلا صاحب د تقريرونو اورېدو نه بغېر ئې بل کار هم نهٔ وهٔ.

ما د خپل ملګري سره د پښتنو په سيمه او خاص کر سوات غوندې سپلاني سيمه کښې د مذهب په نوم د تشدد د خورېدو په موضوع خبرې کولې چې په دې کښې زما ټيليفون وغږېدهٔ. په سوات کښې زما د همکار، نياز احمد خان فون وهٔ. د ټېليفون په شنه بټنه مې ګوته کېښودهٔ او چې په خبرې مې ووئيل نو د هغه اړخه راته نياز ډېر په وارخطايۍ او وېرېدلې اواز کښې ووئيل چې:

"سر! طالبانو زمونږ په کېمره مېن حمله کړې ده. کېمره ئې ترې ماته کړې ده

او هغهٔ ئې د ځان سره تښتولے دے."

زما د پښو نه زمکه وتښتېده. يوه دا چې زهٔ خبر وم چې طالبان پهٔ داسې حالاتو کښې بيا څهٔ کوي او بله دا چې کېمره مېن کم عمره هلک وهٔ، ډېر حساس وهٔ. ما وئيل کهٔ ازاد هم شي نو ټول عمر به د دغه وېرې نه پهٔ وتلو کښې بريا لے نهٔ شي. نياز ته مې ووئيل چې تهٔ چرته ئې؟ نو هغهٔ را ته ووئيل چې پهٔ هغهٔ ئې هم بريد کړے وهٔ خو هغه پهٔ تښتېدو کښې بريا لے شوے دے.

قيصه څهٔ داسې رنګ وه چې مُلا فضل الله پهٔ اسلام اباد کښې پهٔ لال مسجد او جامعه حفصه د پوځ د عملياتو پهٔ ضد احتجاج کول غوښتل او د کبل پهٔ ګراونډ کښې ئې خلقو ته وېنا کول غوښتل. پهٔ لاره کښې پوليسو ايسار کړو خو معلومه نهٔ ده چې د کوم ځائے نه احکامات راغلل او مُلا صاحب د پوليسو د حصار نه پهٔ وتلو کښې کامياب شو او بيا ورته لار ورکړې شوه.

نيغ کانجو ته پهٔ خپل اس سور ورسېد. پهٔ دې وخت کښې پهٔ زرګونو خلق او د فضل الله طالبان د کانجو چوک ته راټول شوي وو. نياز غوښتل چې د دې مظاهرې پهٔ اړه يو وېډيو راپور جوړ کړي. ما ورته وئيلي وو چې کېمره د ځان سره مهٔ وړه ځکه چې وسله وال طالبان د تصوير ويستلو اجازه نهٔ ورکوي خو هغهٔ بيا هم غوښتل چې تې وي له راپور ځي نو بايد چې وېډيو ورسره لاړه شي او د يو صحافي پهٔ حېث د هغهٔ فېصله ټيک هم وه.

ما غوښتل چې کېمره مېن تاج رحمان ته څهٔ زيان ونهٔ رسي نو لهٔ دې کبله مې د تحريک طالبان سوات وياند مسلم خان او سراج الدين ته د ټېلېفون پهٔ ذريعه د کال کولو هڅې وکړې خو کامياب نهٔ شوم. طالبانو هلک امام ډېرې مرکز ته رسولے وهٔ، وهلےئې وهٔ او د نورو وېرولو لپاره ئې ورته درکې ورکولې چې تهٔ د امريکې ايجنټ ئې نو ژوندے دې د اور لمبو ته اچوو.

بیا مې په مینګوره کښې د ازادۍ اخبار مالک ممتاز احمد صادق او خپل ملګري عثمان اولسیار ته فون وکړو. هغوي هلې ځلې شروع کړې او د ځائې مشرانو په کوششونو ئې تاج رحمان د وسله والو څخه راخوشې کړے وۀ او هسپتال ته ئې د علاج لپاره بوتلے وۀ.

ما د ملګري نه اجازت واخستو او سوات ته روان شوم. دا داسې ورځې وې چې د سوات انتظامیه په شا شوې وه او وسله والو طالبانو خپلو هلو ځلو له دوام ورکړے وۀ. د پولیسو مشر یامین خان غوښتل چې مونږ دې راپور درج کړو خو ځائي مشرانو وئیل چې ښه به دا وي چې د طالبانو د امیر فضل الله سره مخامخ خبره وشي او غوښتنه ترې وشي چې د میډیا د ملګرو حفاظت یقیني کړي او هاغه وسله والو ته سزا ورکړي چا چې په تاج رحمان تشدد کړے وۀ. د زورور سره نور څۀ کېدے شي خو په جرګه به ورځو. زۀ، نیاز احمد خان او ممتاز صادق ملګري شو او د سوات د سیند نه هغه اړخ ته د مُلا فضل الله کور ته د جرګې په نیت لاړو چې خپله ګیله ورته وکړو او د کېمرې د تاوان غوښتنه ترې وکړو.

چې مام ډېرۍ مدرسې ته ورسېدو نو د طالبانو ویاند سراج الدین مو هرکلے وکړو. ګېر چاپېره وسله وال ځوانان ګرځېدل. ځینې ځائي خلق هم وو چې د مدرسې د تعمیر په کار کښې بوخت وو. فضل الله ځائي سړے وۀ نو د سیمې په رسم او رواج پوهېدو. د والي سوات د دور په شان د مدرسې د تعمیر لپاره ئې د یو یو کلي ذمه واري لګولې وه. د اشر اعلان ئې کړے وۀ. هره ورځ به د یو کلي څۀ خلق راتلل او د مدرسې په جوړولو کښې به ئې مرسته کوله. په دغه وخت کښې د سوات په ځینو برخو کښې ښځو خپل د سرو زرو کالي هم د مدرسې د تعمیر لپاره عطیه کړي وو. پښتنې ښځې خپل کالي ډېر په ګرانه بل چا له ورکوي. دا

زهٔ د مُلا فضل الله هنر ګڼم چې خپله خبره ئې د هغوي تر غوږونو رسولې وه او هغوي ئې پهٔ دې قانع کړې وې چې د دغه کالو پهٔ بدل کښې به د جنت د نعمتونو حقدارې وګرځي.

د فضل الله سره مونږ د مدرسې پهٔ چت ولیدل. پهٔ دغه وخت کښې زمونږ نه ګېر چاپېره وسله وال کسان ولاړ وو چې د ځینو پکښې مخونه پټ وو او ځینو د نمر تورې چشمې پهٔ سترګو کړې وې. مُلا صاحب ووئیل چې دا ځائے سم نهٔ دے، د هغهٔ بېټک ته به لاړ شو او پهٔ ارام به خبره وکړو. سراج الدین او فضل الله وړاندې او مونږ وروستو پهٔ مام ډېرۍ کښې د هغهٔ د خښتو او سیمټو نه جوړ پوخ بېټک ته لاړو.

خدمتګارو راله شنې چائې راوړې. خبرې شروع شوې. ما ورته وضاحت وکړو چې زمونږ ملګري د امریکې ایجنټان نهٔ بلکې د یو مقامي ټېلي ویژن کېمره مېنان دي او هغوي غوښتل چې د خبرونو لپاره ویډیو واخلي نو ځکه ئې جلسې ته کېمره راوړې وه. خو دغلته ځینو وسله والو ووهلو، کېمره ئې ترې ماته کړه او بیا ئې د ځان سره بوتلو. مُلا صاحب زمونږ خبره ډېره پهٔ غور واورېده. پهٔ دغه دوران کښې د طالبانو ویاند مسلم خان او یو څو وسله وال هم راغلل چې مخونه ئې پهٔ تورو ټوکو کښې پټ وو او زمونږ ګېر چاپېره کښېناستل. ځیني پکښې پهٔ پوړو کښې هم ودرېدل.

مُلا فضل الله ډېر پهٔ غور زمونږ خبره واورېده او زمونږ سره ئې زمونږ د ملګري پهٔ وهلے کېدو او د کېمرې پهٔ ماتېدو خپله خواخوږي ښودله. کله چې د مسلم خان د خبرو وار راغے نو هغهٔ ډېر پهٔ ستغه ووئیل چې څهٔ شوي دي ښهٔ شوي دي. میډیا طالبانو پسې پروپیګنډې کوي او بله دا چې تصویرونه ویستل هسې هم پهٔ اسلام کښې جائز نهٔ دي نو بس د کېمرې د تاوان خبره هېره کړئ او

کېمره مېن چې کومو کسانو وهلې دے، هغه ناپوهه وو، د طالبانو مشران به ئې پوهه کړي.

په فضل الله د مسلم خان دا خبره ښه ونه لګېده، په قهرېدلي نظر ئې مسلم خان ته وکتل، وئیل ئې چې دوي په جرګه راغلي دي. پکار ده چې مونږ د دوي خبره واورو. تاسو د جرګې په اصولو نه پوهېږئ، د پښتو د رواج نه نه يئ خبر؟ په دې سره مسلم خان خاموشه شو او بيا ئې څه ونه وئيل.

فضل الله ووئيل چې هر څه شوي دي، سم نه دي شوي. هغه به په رېډيو په خپل تقرير کښې د دې معافي وغواړي او په يوه هفته کښې به د کېمرې تاوان هم پوره کړي.

ريښتيا چې مُلا فضل الله د خپلې وعدې مطابق په رېډيو په خپله وينا کښې بخښنه وغوښته او زياته ئې کړه چې په تاج الرحمان تشدد د ځينو جذباتي هلکانو له خوا شوے دے چې هغوي سراسر غلطي کړې ده او دا چې هغه به ئې تپوس وکړي.

دا زمونږ د پاره د بريا خبره وه ځکه چې په دغه وخت کښې چا د وسله والو طالبانو په اړه يوه خبره هم نه شوه کولې. ټوله سيمه د وېرې ترهې خپسې په خپله ولقه کښې نيولې وه.

يوه هفته وروستو سراج الدين ټېليفون وکړو چې مونږ دې د جمعې نمانځه له مام ډېرۍ ته لاړ شو چې د مولانا صاحب نه د کېمرې تاوان ترلاسه کړو. زه په دغو ورځو کښې د څه ريکارډنګ لپاره په پېښور کښې وم خو نياز احمد خان او د ټي وي مرکزيو څو نور ملګري د فضل الله ملاقات له لاړل.

نياز راته بيا وروستو ډېر په خوند خوند دا قيصه وکړه چې د جمعې د نمانځه نه وروستو فضل الله په ناستو خلقو غږ وکړو چې د کېمرې د تاوان پوره کولو لپاره

دې چنده (عطیه) ورکړي. یو طالب د امیر صاحب مخې ته څادر خور کړو او خلقو ور پکښې د نوټونو په شکل کښې چندې ورواچولې. چې ډېرو خلقو چندې ورکړې نو نیاز ته ووئیلے شو چې په څادر کښې اچولې شوې روپۍ راغونډې کړي او هر څومره چې دي، د کېمرې د تاوان په توګه دې قبولې کړي.
نیاز چې دفتر ته راورسېد او روپۍ ئې وشمارلې نو د کېمرې د قیمت نه لږې وې خو د وعدې مطابق هغهٔ قبولې کړې.
تاج رحمان د هسپتال نه رخصت کړے شو. جسماني ډېر زخمونه پرې نهٔ وو خو داسې ښکارېدو چې لکه روح ئې زخمي شوے وهٔ او زړهٔ او ذهن ئې د دې پېښې د وېرې څخه لا ازاد شوے نهٔ وهٔ. ما پهٔ چُټۍ خپل کور ته ولېږلو. د کور د مشرانو لهٔ خوا ورته سوات ته د تلو اجازت تر لاسه نهٔ شو او هغه بیا سوات ته راستون نهٔ شو.

# بدها سرګردانه دے

د مینګورې ښار نه خواوشا د پنځلس کلومیټره په فاصله د جهان اباد کلے دے. دا کلے د څلور واړه اړخ نه په غرونو کښې راګېر دے. یو وخت داسې وو چې د دې غرونو په لمنو او سرونو به د بدھ مت منونکو د مینې او امن تبلیغ کولو. دلته به د انسانیت د عظمت خبرې او بحثونه کېدل او د ژوند په تیارو کښې به د رڼا لټون کېدلو.

نن، زرګونه کاله وروستو، د مینې او امن او انسان سره د ښېګړې دغه تبلیغات د بارودو په لوګو کښې، په بمې چاودنو اود انسانانو د وژنې غوندې ناوړه کارونو په وحشت کښې ورک شوي او هېر شوي دي.

دا د کال ۲۰۰۷م د اکتوبر میاشت وه. په اکتوبر کښې په سوات کښې موسم یخ وي، شپې اوږدې شي او په کلیوالو سیمو کښې خلق د ماښام د تیارې د خورېدو سره سم خپلو کورونو ته ستنېږي.

د جهان اباد په یو غره کښې د بدها یوه مجسمه په غره کښې کنستلې شوې ده. په دې کښې بدها د مراقبې په حال کښې ښودلے شوے دے. د پېړیو راهسې د بدها منونکي او په فن او هنر مئینان د دې مجسمې د زیارت لپاره وخت په وخت راغلي دي. دا "Rock carving" خواوشا ۲۲ فُټه اوچت دے او د تاریخ پوهانو په وینا په اوومه پېړۍ کښې جوړ شوے دے. دا د لرغون پوهانو (Archeologists) لپاره په بامیان کښې د بدها د مجسمو نه ورستو د ډېر ارزښت وړ هنري کار وه.

په سیمه کښې د مذهبي سخت دریزۍ د مفکورې د خورېدو نه وروستو د سیمې

د لرغوني تاريخي اثارو څهٔ اهميت پاتې نهٔ شو. سخت دريزه مذهبي ټولګو غوښتل چې هر هاغه څهٔ د مينځه يوسي کوم چې د يوې داسې ټولنې د بنياد کېښودلو لپاره مهم وي چې پهٔ انسانيت، زغم او مينه ولاړه وي.

د اتم اکتوبر پهٔ شپه وسله والو طالبانو پهٔ جهان اباد کښې د بدها د دغه لرغوني اثر د رنګولو تابيا وکړه. د کلي يو اوسېدونکي شمشېر خان ما ته ووئيل چې د شپې څهٔ ځلوېښت پنځوس وسله وال طالبان پهٔ کلي راتېر شول او دغرهٔ د لمنې هغه برخې ته ئې ځان ورسوهٔ چرته چې بدها پهٔ مراقبه کښې ناست وهٔ.

د دوي سره جنرېټراو پهٔ کاڼي کښې د سورو کولو اوزار هم وو. د کلي خلقو ته ئې ووئيل چې ستاسو سره مو کار نشته، خپل کار کوو او ځو.

شمشېر خان زياته کړه چې وسله والو اول د مجسمې پهٔ سر کښې سورې وکړل، بيا ئې د بارودو نه ډک کړل او اور ئې ورته پورته کړو. د چاودنې سره د مجسمې سر پهٔ جزوي توګه رنګ شو. وسله وال تر ډېرو ساعتونو بوخت وو چې څهٔ رنګ دې مجسمې ته د ډېر نه ډېر تاوان ورسوي. د سحر د رڼا خورېدو نه وړاندې ئې خپل سامانونه راټول کړل، پهٔ ډېر فاتحانه انداز ئې خپل کلاشنکوفونه اسمان ته جګ کړل، ډزې ئې وکړې او ستانهٔ شول.

پهٔ سېدوشريف کښې د سوات ميوزيم ډائريکټر محمد اقليم راته ووئيل:

"پهٔ سوات کښې د بدها دوه ويشت داسې تاريخي اثار دي چې پهٔ ښهٔ حال کښې دي او بايد د حفاظت لپاره ئې کامونه پورته کړے شي."

هغهٔ غمژن وهٔ او دا وېره ئې محسوسوله چې هسې نهٔ دا لرغوني تاريخي اثار د وسله والو د بريدونو لهٔ خوا هم د مينځه لاړ شي.

دا تاريخي اثار کهٔ يو خوا د دې سيمې د اولس د اولسي، تاريخي او کلتوري شناخت دپاره مهم دي او هغوي ترې د خپل سباوون لپاره الهام اخستے شي

نو بل خوا دا د بدهـ مت د منونکو لپاره ډېر مقدس ځایونه دي او که چرې حفاظت ئې وشي نو دلته مذهبي سېلګري"Religious Tourism" وده کولې شي او د سيمې د اولس په اقتصادي او کلتوري پرمختګ کښې يو مهم کردار لوبولے شي.

کله چې په کال ۱۹۹۲م کښې سخت دريزه هندوانو په هندوستان کښې تاريخي بابري جومات رنګ کړهٔ نو په پاکستان کښې هم د دې په ځواب کښې قهرژني مظاهرې راوپارېدې. هم په دغو ورځو شپو کښې د سوات په غاليګي نومې کلي کښې خلقو د بدها يوه بله مجسمه هم رنګه کړه چې د بريکوټ نه مينګورې ته تلونکي د لوے سړک په غاړه په يو غرهٔ کښې کنستلې شوې وه. دغه شان په پير بابا بونېر کښې د سکهانو په ګوردواره هم بريدونه وشو او هغه وسوزولې شوه.

د دې ټولو بريدونو په شا هاغه خلق وو چې د اسلام د امن پيغام ئې هېر کړے او د ذاتي تعصب، ناپوهۍ او سياسي مقصدونو لپاره ئې اولس د عدم برداشت او تشدد په لور بوتللو او د سيمې د تاريخي او کلتوري تسلسل مزے ئې غوڅولو.

د سوات د کلتوري ټولنې مشر عثمان اولسيار راته وئيل چې څو کاله وړاندې مرکزي حکومت ته د يوې بهرنۍ ادارې له خوا څهٔ سل مليونه روپۍ په دې غرض ورکړې شوې وې چې د دې تاريخي اثارو د حفاظت له پاره په کار راوستلې شي خو تر اوسه په دغه اړه څهٔ کار نهٔ دے شوے.

ډاکټر عديل ظريف په پېښور کښې د يوې غېر سرکاري ادارې "سرحد کنزروېشن نېټ ورک"(Sarhad Conservation Network) مشر دے. هغهٔ راته وئيل چې په اصل کښې د پاکستان د رياست پاليسي د کلتور نفي کوي. ډاکټر صاحب سپيناوے وکړو چې د پاکستان په درسي کتابونو کښې طالب علمانو ته ښودلے کېږي چې د هېواد قومي تاريخ د کال ۱۹۴۷م نه

شروع کېږي. دا بالکل غلطه خبره ده. د دې سيمې تاريخ خو زرګونه کاله زوړ دے او دلته د ګندهارا په نوم د نړۍ د يو ډېرلوے تهذيب بنيادونه کېښودے شوي وو.

په دې موضوع ما په دغه وخت کښې د کراچۍ نه د خپرېدونکې "نيوز لاين ميګزين" لپاره د "Obliterating a Rich Past" په نوم يو راپور هم ليکلے وۀ. د راپور لپاره مې د پاکستان د نومورې اداکارې او ليکوالې فريال ګوهر سره خبرې وکړې. فريال د تاريخي اثارو د حفاظت يا "کنزروېشن" (Conservation) په اړه په يوه ځېړنيزه پروژه هم کار کوي. د هغې نه مې وپوښتل چې په پاکستان او خاص توګه د پښتنو په سيمو کښې په تاريخي اثارو بريدونو ته هغه په څۀ نظر ګوري؟ نو هغې راته ووئيل چې وسله وال تنظيمونه او ځينې داسې خلق چې په جرمونو کښې ککړ وي، په لرغوني اثارو بريدونه لۀ دې کبله کوي چې د ميډيا او نړيوالو توجه ځان ته کش کړي او دغه شان په حکومتونو د خپلو غوښتنو منلو لپاره فشار واچوي.

فريال د دې اثارو د اهميت په اړه ووئيل چې په اصل کښې دا رقم اثار د يو قام د تاريخي او کلتوري ارتقا يو "Timeline" وي او د قام په شناخت "identity" جوړولو کښې مهم کردار لري. د دې اثارو حفاظت ځکه مهم دے چې مونږ د دې اثارو نه د پخوانو ټولنو د ژوند ژواک، هغوي ته د وړپېښو ستونزو او د هغوي د کارنامو په اړه علم او پوهه ترلاسه کولې شو. د دې پوهې نه بغېر مونږ د مستقبل په اړه منصوبه بندي څنګه کولې شو؟

# جاپانـــي سېلګرے، تخت بهائي
# او په هغهٔ د کانو باران

د پښتونخوا صوبې، د مردان ښار نه د پينځلس کلوميټره په فاصله د تخت بهايي د بده مت د راهبانو د عبادت لپاره د تعميرونو يو "کمپلېکس" (Complex) دے چې په وړومبۍ صدۍ قبل مسيح کښې جوړ کړے شوے دے. وخت په وخت وربانديې بريدونه او يرغلونه شوي دي خو خونديې ځکه پاتې دے چې د يو غر په سر جوړ دے. خوا ته ورسره د سري بهلول کنډرونه دي چې په يوه زمانه د ژوند د رنګه ډک ښار وو. "د ملګرو ملتونو د تعليم او کلتور سازمان" (يونيسکو) دا د نړۍ په مهمو کلتوري اثاثو کښې شمېري.

دا د دوه زره پينځم (۲۰۰۵م) کال د ژمي موسم وو. زهٔ د ملګرو سره د دې کنډرونو په اړه د يو ډاکومنټرۍ جوړولو په غرض دغه کنډرونو ته په غره کښې ورختم. چې لږ مزل مو وکړو نو يو ځوان هلک مو وليدو چې په ډېره منډه په ښکته راروان وو. چې مونږ ته راورسېد نو معلومه شوه چې دا يو جاپانــے وو چې د پښتنو روايتي کالي يې په غاړه وو. ډېر وېرېدلے او وارخطا وو او سر يې هم لږ زخمي وو. مونږ رايسار کړو خو هغه دومره وېرېدلے وو چې په مونږ يې هم باور نهٔ راتلو. ما ترې په انګليسي ژبه پوښتنه وکړه چې څوک يې او څهٔ درسره وشو؟ هغهٔ په انګليسي ژبه خبرې نهٔ شوې کولې خو بره غرهٔ ته يې ګوته نيوله. زمونږ ملګرو ورله اوبهٔ ورکړې او د تندې نه يې ورله وينه اوچه کړه. زما دوه

ملګرې په غره کښې په بره لاره چې معلومه کړې چې په مېلمه ګزارونه چا کړې دي؟ لږ وخت وروستو ملګري راغلل. هغوي وويل چې بره د خواوشا کلو څه ماشومان وو چې دا مېلمه يې په کاڼو ويشتلي دے. هغوي وويل چې دا کافر دےاو دهٔ ته ضرر رسول د ثواب کار دے. د پښتنو تولنه چې د مېلمه دوستۍ لپاره يو نوم لري، نن دې حال ته رسېدلې ده چرته چې ماشومان هم د سخت دريزه مذهبي تعليماتو د اثر لاندې وو او د ثواب معنې نه يې خبره ئې هم په وينه کښې ثواب لټولو.

دا جاپانے سېلکرے وهٔ او د بدهه مت منونکے وهٔ او د دغه تاريخي اثارو د ليدو او ورته د مذهبي احترام او عقيدت وړاندې کولو لپاره راغلے وهٔ ــ خو د خپل عقيدت او مينې په کوڅو کښې په کاڼو وويشتلے شو.

مونږ غوښتل چې د بدها دا مينه وال د ځان سره ايسار کړو خو هغهٔ ښکته لارې ته اشارې کولې چې ګنې تلل غواړي. زمونږ يو ملګري تر لوئې لارې ورسولو. ما فکر کوهٔ چې دا زلمے کله خپل وطن ته خپلو خلقو ته ورسي نو چې زمونږ په اړه به ورته څهٔ وائي؟

# دير، کوهستان او د سپوږمۍ شپه

دوه زره شپږم (۲۰۰۶م) کال وه. په مېداني سيمو کښې ګرمي ښه په زور کښې وه. زه په دفتر کښې ناست وم چې په موبائل فون راته د دير ضلعې د "ورکس اينډ سروسز ډيپارټمنټ"(Works & Services Department) د مشر سيد جلال صاحب چې خلق ئې په جان صاحب هم پېژني، ټيليفون وکړو. د خېر په خبر نه وروستو ئې راته دعوت را کړو چې بر دير ته لاړ شم او د کوهستان د دنګو غرونو په ښائستونو او هلته د اوسېدونکو خلقو په ژوند ژواک د تې وي لپاره يو پروګرام رېکارډ کړم.

جان صاحب په وطن مئين يو سپېځلے پښتون دےاو مشران ئې د پخواني چترال رياست واکمن پاتې شوي دي. د هغوي دعوت زما د پاره حکم وه او بله دا هم غوښتل چې د بر دير د کمراټ دره، جاز بانډه، کلکوټ او لاموتۍ سيمې ووينم. نو په يوه هفته کښې مې پروګرام راجوړ کړو او بر دير ته روان شوم.

د ملاکنډ په غرهٔ ورتېر شو ـــ هاغه ملاکنډ چې د بهرملکي ځواکونو په ضد د پښتنو په مزاحمت کښې ئې لوےکردار لوبولے دے. د برطانيې پخواني وزيراعظم ونسټن چرچل دلته د پيرنګي پوځ سره د خبرياال په توګه وخت تېر کړے وهٔ او خپل يادونه ئې په کال ۱۸۹۷م کښې د "The Story of the Malakand Field Force" په نوم خوندي کړي دي او په دغه کتاب کښې ئې د ملاکنډ د پښتنو قبيلو سره د پيرنګيانو د جنګونو قيصې ليکلي دي.

هسې خو د ملاکنډ ټولې سيمې د تاريخ د مزل پړاوونه او د فطرت د ښائستونو علامتونه دي خو د بردير او برسوات غرئيزې سيمې د ژوند د رنګ او ښائست

داسې ګودرونه دي چرته چې هر احساس خوږ دے او هر اواز سندره ده.
د بردېر نه د شرينګل پهٔ لاره تولې درې د رنګونو نه ډکې دي. هر غر ئې د ښائست د ښاپېرو غر دے او هر بوټے ئې دارو دے. پهٔ دې غرونو کښې کوهستانيان اوسېږي. دا پهٔ زړهٔ او پهٔ ذهن پاک خلق دي. د دوي د ژوند ټوله اداړه هم پهٔ دغه غرونو او ځنګلونو ده خو د ډېرې مودې نه د ښکته سيمو نه ټيکه داران راځي، د حکومت د ځينې چارواکو پهٔ مرسته د دوي ځنګلونه وهي او دوي له پهٔ بدل کښې څهٔ نهٔ ورکوي.
د شرينګل نه کمراټ ته لاره تلې ده. د کمراټ درې پهٔ غرونو ځنګلونه او پهٔ لمنو کښې ئې د ګلونو لړۍ دي.

الله پهٔ تورو غرو مئين دے

پهٔ سر ئې واورې وروي وېښ کښې ګلونه

د درې پهٔ مينځ کښې د پنجکوړې سيند بهېږي. مونږ يوه شپه د دې سيند پهٔ غاړه داسې وکړه چې د دې سيمې نه د يو سياسي مشر فريدخان د کورنۍ زلمو راله د سيند پهٔ غاړه پهٔ مېدان کښې اور بل کړو، اور څهٔ وهٔ خو لمبې وې چې تر سحره بلېدې او مونږ ترې ګېر چاپېره بسترې اچولې وې. کمبلونه مو اچولي وو ـــ يو خوا ته د سيند داوبو شور او بل خوا د اور د لمبو رڼا او تودوالے ـــ دا زما د ژوند يوه ښائسته شپه وه او تر ډېرو ورځو هم پهٔ دغه خمار کښې ډوب ګرځېدم.
فکر مې کوهٔ چې د خپل غفلت او ناپوهۍ لهٔ کبله مونږ د دې جنتونونه هاغه خوند وانهٔ خستو کوم چې پکار وهٔ. دلته ډېر خلق د ژوند د اسانتياو نه بې برخې دي، غريبان دي. يا خو پهٔ خپلو پټو کښې خواري مزدوري کوي او يا ښکته ښارونو ته د کار لپاره ځي.

د سخت درېزه مذهبي ډلو د راتګ سره دلته هم ځينې خلق د ژوند په اړه داسې فکر لري چې هغو د پرمختيايي کارونو ته د شک په نظر ګوري، بدلون ته نه دي اماده ـــ نه دې ته تيار دي چې ژوند د جهالت د اژدهاد خولې نه راوباسي.

په يو وخت کښې د کمراټ د سيند دواړه اړخ ته دا ټولې درې د ځنګلي ګلونو نه ډکې وې ـــ په خوشبويانو معطره وې خو دا ځل ما وکتل چې په ډېرو برخو کښې ئې هغه ګلونه نه وو غوړېدلي. ما پوښتنه وکړه چې دا ولې؟

نو د سيمې ځوانانو راته ووئيل چې دلته ځينې مشران نه غواړي چې سېلاني راشي. دوي فکر کوي چې دې سره دلته فحاشي خورېږي نو ځکه ئې دغه ګلونه رېبلي دي او د هغې په ځاے ئې الوګان کرلي دي. زمونږ په وطن کښې د ګلونو دښمنان هم څه لږ نه دي! په زمکه د ګلونو هغه رنګونه ئې خړ الوګان د زمکې لاندې کړل.

بله ورځ راپسې جان صاحب هم راورسېد. د تېمرګرې دا کتر شعيب هم وه او زمونږ شاعر ملګرے اقبال حسين سالار هم سره د خپلو ملګرو راغے. د لاموتۍ او جندرۍ خلق راسره ملګري شو. خوراکي مواد، لاټېنونه او کمبلې مو د ځان سره واخستې او د جازبانډې په لور روان شو.

لاره د غرونو په سرونو او د درو په غېږه کښې تېره شوې ده. يو غر پسې بل غر، يوې درې پسې بله دره ـــ هر غر د بل غر نه زيات مغرور او هره دره د بلې درې نه زياته ښائسته. د کلي ملک صاحب راته وئيل چې کله هغوي مزل کوي نو په درې ساعتونو کښې جازبانډې ته رسي خو مونږ د غرۀ د مزل بلد نۀ وو نو مونږ خواوشا شپږ ساعتونه واخستل.

چې ډېر بې ساه به شو نو د کلي ملګرو به راته وئيل چې کله جازبانډې ته ورسو نو ټول ستړيتوب به مو ختم شي. يو ځاے يو کس راله په پکول کښې ځنګلي

ګلونه وټومبل. وئیل ئې د دې سره به دې ساه سمه وي او سفر به ښهٔ کولے شي.

ماښام شو. د نخښېترو ځنګل وهٔ. مونږ سفر کوهٔ. يو ځوان پهٔ لاره تېرې وئيلې، ډېر خوږ اواز ئې وهٔ. اخر دا چې يو بل غر ته ور سم شو. سره د دې چې شپه رو رو پهٔ راغزېدو وه خو تيارهٔ نهٔ وه. ټوله دره د سپوږمۍ د پلوشو پهٔ رڼاګانو روښانه وه. فطرت د ښائست باړانونه ورول. چې د غر نه پورته شو نو د شنو چمنونو يوه اوږده لړۍ مو پهٔ نظر شوه. لکه چې جنت ته دروازه پرانستلې شي ـــ لکه چې بنده د تخيل پهٔ وسعتونو کښې د ځانه هم بې درکه شي ـــ لکه چې دا د نړۍ د ټولو ښائسته ځاے وهٔ ـــ دا جازبانړه وه!

شپه وه. هاغه ملګري چې زمونږ نه مخکښې رسېدلي وو، اور ئې غرغنړه کړے وهٔ او د خوراک تيارۍ روانې وې. پهٔ جازبانړه کښې د خاورو ګټو د يو جومات نه علاوه بل تعمير نهٔ وهٔ. پهٔ جومات کښې مو سامانونه واچول او بهر راووتلو. ټوله شپه مو د جاز بانړې پهٔ معطره فضا کښې پهٔ خبرو او سندرو کښې تېره کړه. سحر نزدې مو لږ ارام وکړو او بيا خواته، د کتوري ډنډ ليدو له لاړو. دا د ګېرچاپېره غرونو نه د واورو اوبهٔ راځي او د دغه ډنډ پهٔ شکل کښې د جازبانړې ښائستونو له د جلال او جمال رنګونه ورکوي.

د دغې درې نه د سوات کوهستان ته هم لاره تلې ده او کهٔ د دواړو درو ترمينځه سړک جوړ کړے شي نو دې سيمې ته به خلق پهٔ اسانه تلے او راتلے شي او د سيمې اقتصادي وده به ورسره هم وشي.

د ډنډ د شنو رڼو اوبو پهٔ سر د نمر د رڼا پلوشې خورېدې او زهٔ دې فکر وړے وم چې د دې جنت خلق ولې تر دومره اوږدې مودې د غربت او ناپوهۍ د تورو تيارو بلا پهٔ خپله پنجه کښې نيولي دي؟

# مستي مې ستر ګو له د لامکانه را

د دوه زره شپږم (۲۰۰٦م) کال د سپرلي خوشبو او رنګونه د بر دیر د لوارۍ د غرۀ پۀ لمن کښې ښۀ پۀ جوبن کښې وو .زۀ سره د خپلو ملګرو ډاکټر اقبال، ډاکټر میرویس، غلام غوث، ګل شېر او ورور محبوب جبران پۀ چترال کښې د ښائست د هاغه منزل پۀ لور روان وو چې نړۍ ئې د کېلاش او کافرستان پۀ نومونو پېژني.

د هندوکش پۀ لمنو کښې پرته هره دره پۀ خپل ذات کښې د جنت حېثیت لري، هره لاره د ښائست منزل ته رسي، هر یو غر د دې سیمې د اوسېدونکو د تاریخي عظمت، برداشت او مینې غمازي کوي او هر ګودر ئې د ګلونو او رنګونو تصویر دے ــــ خو د دغه غرونو پۀ لمن کښې د کېلاشیانو بیریر، رامبور او بمبوریت درې داسې جنتونه دي چرته چې د ښائست ښاپېرۍ د خپلو ټولو رنګونو او سازونو سره زړونو ته د ژوند لازواله احساسونه وربخښي.

د چترال د ښار نه وړاندې او زمونږ د ګاډي چلوونکي ګس لاس ته د وړو او لویو لویو غرونو پۀ لمنه کښې پۀ تاو راتاو غوړېدلي یو سړک مونږ د خپل مرام پۀ لور مزل شروع کړو. چینو، چینارونو، ابشارونو او ځنګلي ګلونو پۀ دغه لارو د ټلونکو هرڅلے کولو. نظر پۀ لېونو ښائستونو کښې ورک د یو نوي جهان پۀ لټون کښې وۀ او زړۀ د راتلونکو منظرونو لیدو ته بې قراره وۀ.

په دغه دنګو دنګو غرونو کښې رالوتلې د هوا هرې چپې او د ګلونو د خوشبو هر احساس، د ځان سره د کېلاشيانو د لرغوني تاريخ قيصې او داستانونه راوړل.
د پښتنو په خاوره چې تولنه د رجعت پسندۍ ښکار ده او ژوند ته نږدې قدرونه او دودونه رو رو په ورکېدو دي، د سکندر اعظم د ځوا کونو نه پاتې شوو دې خلقو خپلې سندرې، ژبه، کلتوري قدرونه، مېلې، کالي پټرې او روايتي ګډاګانې ژوندۍ ساتلې دي.
يو وخت داسې وه چې د کېلاش قبيلې د هندوکش په لمنو کښې په ډېر لوے شمېر کښې اوسېدې. خو اوس ئې شمېر تر څلورو زره ډېر نۀ دے او د چترال تر درېو درو رامبور، برير او بمبوريت محدود پاتې شوي دي. دا خلق د چترال د ښار نه خواوشا د شل کلوميټره په فاصله، د ګټو او د لرګو نه په جوړو کورونو کښې ژوند کوي، ګډې بيزې ساتي او ډېر ئې کرونده ګر دي.
کېلاشيان د فطرت په غېږه کښې ساه اخلي. د ښائست عبادت کوي او د جمال او جلال سندرې وائي. هر کال د سپرلي په موسم کښې چې د ښائست رنګونه خپاره شي نو دوي د نوي کال هرکلے په ګډاګانو او سندرو کوي. د انګورو نه اوبۀ وباسي او ډېر ښۀ وائن (Wine) ترې جوړوي.
مونږ چې بمبوريت ته ورسېدو نو غوښتل مو چې د کېلاشيانو د يوې مشرې مېرمن لکشن بي بي سره ووينو. لکشن بي بي يوه ښائسته ښځه ده چې د خپلو خلقو د کلتوري او تولنيزو قدرونو د خوندي کولو او د خپلې سيمې د پرمختيا لپاره د "Indigenous Kalash Survival Program" په نوم د يوې غېر سرکاري ادارې مشري کوي. لکشن بي بي د دې دنګو غرونو نه وتلې هغه وړومبۍ ښځه ده چې د کمرشل جهاز د چلولو لائسنس هم لري خو اوس د خپلو خلقو خدمت او د کېلاش کلتور په نړيواله کچه د وروپېژندلو لپاره هلې ځلې کوي.

د هندوکش په لمنو کښې د نمر پلوشې په خورېدو وې چې مونږ د لکشن بي بي کور ته ورسېدو. لکشن بي بي د ځان لپاره د لرګو، سنګ مرمرو او کاڼو په خوندور امتزاج ډېر ښائسته او د نوي ډيزائن کور جوړ کړے دے. يوه برخه ئې د مېلمنو د ضيافت لپاره ده چې هغه ئې د خپلې ادارې د دفتر په توګه هم کاروي. د کور په دالان کښې ئې شين چمن او د وطني ګلونو قطارونه ولاړ وو. د لکشن بي بي پلار مونږ کښېنولو او راته ئې ووئيل چې لږ انتظار وکړو.

لږ ساعت وروستو لکشن بي بي په خپلو روايتي کالو کښې ملبوس زمونږ د هرکلي لپاره راووتله. د ټولو سره ئې ستړي مه شې وکړل او بخښنه ئې وغوښته چې هغې چونکې د ځان لپاره وائن جوړول نو ځکه ئې په مونږ انتظار وکړو او مونږه ټولو ورته ډېر په خوشحالۍ ووئيل چې نه، هيڅ خبره نهٔ ده، مونږ دغه سيمې ته هم د هغې د ليدو لپاره راغلي يو.

لکشن بي بي له لږه ډېره پښتو هم ورځي خو زما ئې انګليسي ايکسنټ (Accent) ډېر خوښ شو. هغې د خپلو خلقو او هغوي ته په وړاندې ستونزو ډېر په اعتماد سره خبرې کولې او دا وېره ئې څرګندوله چې د کېلاش اولس په سيمه او نړۍ کښې د روانو سياسي او ماحولياتي بدلونونو په نتيجه کښې د ډېرو ننګونو سره مخ دي.

لکشن بي بي ووئيل چې کله به سکول ته تله نو عن د خپلې ورورولۍ خلقو به دا ډېره عجيبه خبره ګڼله او په دې نهٔ پوهېدل چې د دې لرې پرتې او غرئيزې سيمې په پرمختيا کښې د جينکو د زده کړو څومره اهميت دے؟

لکشن بي بي ووئيل چې سکول ته د تګ په وخت به کله کله په لارو کښې سپو په مخه کړه، ډېره به ئې وځغلوله خو د دې يوه ګټه به دا وشوه چې سکول ته به ډېره زر ورسېدله.

د لکشن يي يي سره ما د هغوي د کلتور او لرغوني روايتونو په اړه خبرې وکړې، په سيمه کښې د مذهبي سخت دريزۍ د ډېرېدو او د هغوي ټولنې ته په ورپېښو خطرو مو بحث وکړو. هغې ووئيل چې د هغې د خپلې سيمې او خلقو سره ډېر جذباتي تړون دے او هم دغه وجه ده چې هغه سره د دې چې د پاکستان يا نړۍ په بل يو ښار کښې د اوسېدو وسيلې لري، بيا هم هغې چرته بهر اوسېدو ته زړۀ نۀ دے ښۀ کړے او هم په دغه دره کښې د خپلو خلقو سره ژوند کوي.

لکشن يي يي وائي چې د کېلاشيانو دغه سيمه د نړۍ يو ژوندے عجائب ګر (Living Museum)دے چرته چې د سلګونو کلونو زاړۀ روايتونه او کلتوري قدرونه ژوندي دي خو اوس دغلته د سېلانيانو ډېر راتګ او مذهبي ډلو د هلو ځلو ډېرېدو سره په دغه لرغوني قبيله فشار ډېر شوے دے. ډېرو پکښې د غربۍ او ورپېښو خطرو له کبله نور خپل مذهب پرېښے دے او رو رو د کېلاشيانو شمېر په کمېدو دے.

د کېلاشيانو يو بل مشر عبدالخالق د ځان سره د کلي په سېل بوتلم. د دنګو دنګو غرونو په لمن کښې د لرګو او کانو نه جوړ دغه کورونه کۀ هر څومره د يو دېومالائي داستان منظر وړاندې کولو خو ژوند پکښې اسان نۀ ښکارېدو. ښځو د کور د غړيو لپاره د ماښام د ډوډۍ تيارے کولو. ماشومانو چې خپلې روايتي رنګينې جامې ئې اچولې وې، د کورونو د کړکيو او دروازو نه بهر کتل او څۀ جينکو خپلو کورونو ته خپلې ګډې بيزې راروانې کړې وې لکه ټوله ورځ ئې چې بهر د غرونو په درو او پولو پټو کښې تېره کړې وې. يوې بوډۍ ښځې راله د وائن نه يو غټ جګ ډک کړو، وئيل ئې دا زمونږ لۀ خوا ستاسو لپاره ډالۍ ده.

د ماښام رنګينۍ په تېرېدو وې. په ټوله دره د تورې شپې تور څادر رو رو راخورېدو. مونږ د کلي په لارو کوڅو کښې ګرځېدو. د يو ځائي مشر په وينا په يو

مېدان کښې د کلي تولې جينکۍ راټولې شوې وې، يو هلک ډول او بل خپله شپېلۍ راوړه او د روايتي ګډاګانو محفل تود شو.

جينکو، ښځو، سړو او ماشومانو په شريکه د شپېلۍ او ډول د تزنېدلي او زړه راوېښوونکې موسيقۍ سره داسې ګډا وکړه چې که په نړيوال ستېج ور وړاندې شي نو د خلقو نه خو بونه تښتولے شي.

د موسيقۍ محفل چې خور شو نو څۀ وخت وروستو د کلي د کوټو نه د شپېلۍ د اوازونو لړۍ پېل شوه. يو اړخ ته هلکان او بل اړخ ته جينکۍ چې هلکانو به شپېلۍ وغږوله نو بيا به ئې وار جينکو له ور کړو. عبدالخالق وئيل چې داسې دا خلق د شپې ځان مشغول هم ساتي او په دغه شپېلۍ کښې يو بل ته د خپل زړۀ خبره هم کوي.

د شپېلۍ د سوز نه ډکه موسيقي د کلي د کوټو او کورونو څخه اوچتېده او د غږونو په درو کښې لکه د سپرلي د خوشبو خورېده. مونږ چې بله ورځ مازيګرد بمبوريت نه راستنېدو نو ما فکر کوۀ چې دا ټيک ده چې دا خلق د ژوند د بنيادي اسانتياو نه بې برخې دي او ډېر مال دولت هم نۀ لري خو بيا هم دا خلق په ښارونو کښې د اوسېدونکو خلقو نه ډېر خوشحاله دي ځکه چې دوي فطرت ته نزدې دي، د ژوند د زړۀ په نهان خانو کښې د پټې سندرې په راز پوهېږي، د ساز په خوږو خبر دي او بغېر د مينې نور په هېڅ نۀ پوهېږي.

څو کاله وروستو چې په سوات او ملاکنډ کښې د مذهبي سخت دريزۍ لمبې بلې شوې او د مذهب په نوم د انسانانو وژنه پېل شوه نو په بمبوريت، برير او رمبور کښې اوسېدونکي کېلاشيان هم د وېرې او ترهې ښکار شو. د يونان سره تړاو لرونکے يو سېلګرے چې د کېلاشيانو د بچو د زده کړو لپاره ئې هلې ځلې کولې، وسله والو وتښتولو. دغه شان په يوه بله پېښه کښې وسله والو د

کېلاشیانو ځاروي وتښتول او دا درکې ورته هم ورکړلې شوې چې یا مسلمانان شي او یا بیا ځان بریدونو ته تیار کړي. اوس چې په کېلاش کښې د سپرلي مېلې کېږي نو دومره پکښې ځائي خلق نهٔ وي څومره چې پکښې پولیس او امنیتي ځواکونه وي.
نن چې زهٔ د ښائست د دغه خاورې نه په زرګونو میلونه لرې په پردي وطن کښې یم نو دا فکر مې یوسي چې آیا د کېلاش د ښائسته کلیو کورونو نه را اوچتیدونکي د شپېلۍ خوږهٔ اوازونه هم هاغه شان زړونو ته قرار او سکون بخښي او کهٔ نهٔ د وخت تونډ خېزو بادونو دغه اوازونه ساکت کړي دي؟

# پیر بابا او ملنګ

د اختر مېله، د پیر بابا مزار، د مزار خوا ته په جومات کښې يو ملنګ خپل اچکن خور کړے دے، دېوال ته ئې ډډه وهلې ده او د جومات په لمن کښې د اوبو جوړې فوارې ته ګورې. د سپينو سنګ مرمرو جوړې فوارې کښې د نمر پلوشو يو بل له غاړې ورکولې. د ملنګ په غاړه د تسبو امېلونو او د هغهٔ په ګوتو د رنګارنګ غمو ګوتمو د هغهٔ د مزاج موسمونه ښودل.

مونږه تول په څهٔ نه څهٔ پسې ګرځو ــــ هغه هم د څهٔ لټون کوهٔ.

ما وئيل وخت به ورسره ښهٔ تېر شي. ورغلم. ما وئيل ملنګ بابا څهٔ خبر دے؟ وئيل ئې خفه يم. ما وئيل څوک خوشحاله دي؟ خفګان خو ازلي دے ــــ وئيل ئې دا منم خو قيصه داسې ده چې بېګا را ته مرشد په خوب کښې حکم کړے چې ځان زر تر زره د داتا صاحب دربار ته ورسوم. ټرانسفر مې شوے دے او زهٔ دلته پیر بابا سره خوشحاله يم. موسم هم ښهٔ دے.

ټرانسفر؟

وئيل ئې زهٔ لهٔ ټېرو څلوېښتو کالو راهسې په دې ټول وطن کښې ګرځم. د دې خاورې پهٔ درو، سيندونو، غرونو او ورشوګانو تېرېږم، خوبونه وينم او خوبونه وېشم. کله پهٔ يو ځائے کلونه هم تېر کړم او کله ورځ دوه ايسار شم او بيا پهٔ خپله مخه ځم. پينځه کاله مې کاکا صاحب کښې تېر کړل. څو مياشتې وړاندې مې ټرانسفر پیر بابا ته شوے وهٔ خو بېګا راهسې امر دے چې داتا صاحب ته ځان ورسوم.

ما وئيل ملنګه! ته خو هم لکه زمونږ د پې لارو په شان په دائرو کښې چورلې! د دې مزل څۀ سر هم شته که نۀ؟ منزل چرته دے؟ بابا ته لکه زۀ هم خپل ملګرے ښکاره شوم. وئيل ئې کام اخله، مزل کوه ـــ کله چې لار ورکه شي، منزل په خپله په زړۀ کښې لکه د ګلاب وغوړېږي ـــ سوز خپله ساز شي. وئيل ئې کم عقله بونېریه! درد په خپله خپل علاج دے، مزل په خپله خپل منزل دے!

# کترینه، امریکه او زما ملګرې

کال دوه زره لسم (۲۰۱۰م) وۀ. په واشنګټن کښې د "اکېډيمي آف اېجوکېشنل ډېولپمنټ"(Academy of Educational Development)په مرسته امریکې ته د قدرتي افتونو د انتظام په اړه د یو تربیتي پروګرام لپاره تلے وم. د پاکستان نه راسره ځینې حکومتي چاروای، د مدني ټولنې غړي او خبریالان ملګري وو.

پلان داسې وۀ چې مونږ به په واشنګټن کښې څو ورځې ایسار یو او بیا به نیو اورلېنز (New Orleans) او د کېلیفورنیا ځینې ښارونو ته سفر کوو چرته چې به مونږ د قدرتي افتونو سره د مبارزې د بېلابېلو ادارو د مشرانو سره وینو. منتظیمینو غوښتل چې مونږ ته په نیو اورلېنز کښې هاغه سیمې وښودلې شي کومې چې د کترینه په نوم سمندري طوفان ځپلې وې. د دوه زره پینځم کال د اګست په میاشت کښې دې طوفان په زرګونو کورونه وران کړي وو او خواوشا اتلس سوه کسانو پکښې ژوند بائېللے وۀ.

د هالي وود نوموړي اداکار، براډ پټ دلته د "مېک اِټ رائټ"(Make it right) په نوم د کورونو د سر دوباره بیا ودوانولو یوه پروژه هم پېل کړې ده. هغه دې ځپلے شوو خلقو له په خپل خرڅ داسې کورونه جوړوي چې د موسم د بدلون او دغه شان د قدرتي افتونو مقابله کولې شي.

نیواورلېنز د لوزیانا ریاست تر ټولو لوے او مهم ښار دے. خوا ته ئې د

"میسیسیپي" (Mississippi River)سیند بهېږي . دلته ډېر خلق افریقائي نژاد امریکنیان دي. مونږ یو داسې ګاونډ ته ولېږلے شو چرته چې ټول کورونه د سمندري طوفان او سېلابونو له کبله تباه شوي وو . په ځینو سیمو کښې د زیان من شوو د کورونو تشې ډهانچې ولاړې وې. چونکې دغلته د کورونو د بیا ودانۍ لړۍ روانه وه نو د انتظامې او مدني ټولنو د غړو له خوا د اغېزمنو شوو کورونو د رنګولو کار هم روان وۀ.

زمونږ د ډلې ملګري هم ورسره ملګري شو. کار مو شروع کړو. په پلکونو به مو دېوالونه نړول او بیا به مو د هغې ملبه یو خوا ته جمع کوله. خوا ته د یو ګاونډ تور پوستې ښځې راله یخې اوبۀ او د څښکلو لپاره جوس را کړل او ډېره راته خوشحاله وه چې مونږ راغلي یو او د هغوي په ګاونډ کښې کار کوو. یوه امریکه هغه ده چې مونږ ئې د خپلو جنګي سازوسامان سره لېس د ټي وي په سکرین وینو او بله امریکه هغه ده چې په هېواد دننه ده او د دغه ځائے د اولس نه جوړه ده. ربښتیا خبره ده چې په هېواد دننه امریکه کښې د انسانانو قدر کېږي او ډېر ازاد او د یو بل په احترام کلک ولاړ، کلتوري او ټولنیز ژوند لري.

د رېډ کراس له خوا راسره یوه جینۍ وه چې ډېره ښائسته هم وه او تعلیم یافته هم . هغه هر وخت په دې هڅه کښې وه چې مونږ د څۀ ستونزې سره مخ نۀ شو. کار روان وۀ چې یو ملګري خپل لاس زخمي کړو.هغه جینۍ په منډه لاړه او First Aid Kit ئې د ځان سره راوړو، پټۍ ئې ترې رابهر کړه، د هغه ملګري زخم ئې ووینځۀ او ډېره ښه تیمارداري ئې ورله وکړه .

زمونږ نورو د طبیعیت نه شوخ اوشنګ ملګرو چې دا منظر ولیدو نو هر یو به راتلو او کېښناسته به ــــ چا به وئیل په لاس کښې مې بریخ شو، چا به وئیل

پښته مې خوږ شوه او هغه جينۍ به په ډېره خوشحالۍ د هغوي د درملنې غم کوه.
هغه پوهېده چې زما ملګرو ته څهٔ ستونزه نهٔ وه خو د هغې د توجو لپاره ئې دا هر
څهٔ کول، بيا ئې هم څهٔ ګيله يا احتجاج نهٔ کولو. کېدے شي هغه پهٔ دې هم
پوهېده چې زما د وطن جنګ ځپلي خلق پهٔ رښتيا د مينې ډېر اوږي دي.

پهٔ مرګ دې نهٔ مري جانان خوږ دے
پهٔ رنځ دې پرېوځې چې پوښتنې له ورځمه

# د باچا په حرم کښې!

د دوه زره دیارلسم (۲۰۱۳م) کال د اګست میاشت وه. د استنبول د سلطان احمد جومات خوا ته زما د هوټل د کمرې د کړکۍ نه ما وکتل چې د دغه عظیم الشان جومات د ګنبتونو او منارو تر مینځ د مازیګر د نمر پلوشو پټ پټوني کول.

هرې پلوشې چې لکه د ځان سره یې شمېره قیصې راوړې وې. یادونه یې راوړې وې ـــ د باچایانو قیصې، د حرم د وینزو قیصې، د وړے شوو شهزادګانو قیصې، د باسفورس په چپو کښې د ورکو شوو ډوبو شوو وینزو قیصې، په محل دننه د سازشونو قیصې، د مینې او موسیقۍ د محفلونو قیصې، د جنګونو قیصې ـــ

هلته د شفق لمنې سرې شوې، نمر په خپل مدار کښې یو بل چکر پوره کړو او د جومات په منارو ناستو مرغیو هم لکه چې یو بل ته د تولو تېرو زمانو قیصې کولې.

دا جومات چې خلق ورته Blue Mosque هم وائي، په اولسې صدۍ عیسوۍ کښې د سلطان احمد اول په دور کښې د شاهي ارکیټیکټ، صدف کار د محمد آغا په نګرانۍ کښې جوړ کړے شوے وه. دا تعمیر یوازې د عبادت ځائے نه دے بلکې د "بازنطئیم" Byzantium د بادشاهانو له وختو تر اوسه د ټولو تللیو باچایانو د شان او شوکت، زور او دبدبې، فکر او فلسفې یو مجسم شکل دے.

د جومات سره په لږه فاصله د عثماني سلطنت د باچایانو په محل "ټوپکپي" (Topkapi) سرائې کښې د ټولې نړۍ نه راغلي سېلانیان د عثمانیانو د رنګ

شوي سلطنت پاتې شوي اثارو ته کوته په خوله وو. د دغه محل په یوه برخه کښې د سلطان د ښځو او وينزو لپاره حرم جوړ دے. په دې حرم کښې د کورنۍ د ښځو په ګډون د بېلابېلو هېوادونو سره په جنګونو کښې د نيولې شوو ښځو د اوسېدو انتظام شوے وۀ. د حرم د انتظام ټول واک اختيار به د سلطان د مور، والده سلطان، په لاس کښې وۀ. هسې خو دا د خوند مستۍ او نسواني ښائست د رنګونو نه ډک ځائے ګڼلے کېدو خو په دې حرم دننه اوسېدونکو ښځو د بنديوانو په شان ژوند تېرولو. دا د سرو زرو پنجره وه چې د والده سلطان د اجازې نه بغېر ترې وتل ممکن نۀ وو. د حرم د څوکيدارۍ او انتظام ذمه واري هاغه تور پوستو غلامانو ته حواله وه چې خسيان کړے شوي به وو.

دا حرم د دولس سوه نهه نوي صدۍ عيسوۍ نه تر نولس سوه درې ويشتم کاله پورې د يوې سياسي او ټولنيزې ادارې په توګه په کار راوستلے کېدۀ. په دې وينزو کښې څۀ داسې وې چې د سلطان د توجو او مينې وړ ګرځېدلې وې او بيا ئې وروستو د سلطنت په سياسي هلوځلو هم خپل اغېز پرېښے وۀ.

زۀ د دې حرم په کوټو او دالانونو ګرځېدم او د هغه وخت قيصې مې د ذهن په پرده لکه د تصويرونو ښکارېدې. ما د عثمانيانو فوځونه ليدل چې د عيسائي مذهبه اروپا او بلقان په سيمه کښې ئې باچايۍ او حکومتونه د پښو لاندې کول او د ځان سره ئې له هاغه ځايه د غنيمت مالونه راټولول. خلق ئې غلامان کول او د هغه وطنونو تر ټولو ښائسته او پوهه ښځې ئې د وينزو په توګه د ځان سره راوستلې. په دې ښځو کښې به ځينې د سلطان تر حرمه ورسېدې او د هغۀ ديواځېوالي په شپېو کښې به ئې د هغۀ د خوند او مستۍ انتظام کولو. د سرو زرو په دې پنجره کښې مېشته ښځو له دا مهمه وه چې د ادب او فلسفې د زده کړو

سره سره د موسيقۍ د آلاتو د غږولو هنرونه هم زده کړي، څکه چې بغېر له دغې د سلطان زړهٔ څنګه ګتلې کېدے شو؟

زهٔ د باسفورس پهٔ غاړه د سلطان د محل يو ګوټ ته ورسېدم. د سمندر چپو ته مې کتل او د خپل تصور پهٔ نيلۍ سور د عثماني بادشاهانو دور ته ورسېدلم. د ځان نه او د جهان نه نا خبر!

د باچا د لوئې قلعې د دنګ دېوال د سر نه يوه تېرهٔ کريکه راپورته شوه، يو درز شو او ښکته سمندر ته يو پنډوسکے پرېوتو. لږه شېبه کښې د باسفورس خونړو چپو هر څهٔ د ځان سره يوړل. نهٔ نوم پاتې شو او نهٔ نښان. د سپوږمۍ پلوشې تورو وريځو وخوړې.

پهٔ دغه شپه لکه چې يوه بله وينزه د جلاد د تُورې لاندې شوې وه. لکه چې يو بل فقير د زر او زور پهٔ وړاندې د اناالحق اواز پورته کړے وهٔ او د خپل بغاوت او سرکشۍ پهٔ ګناه د سمندر چپو ته سپارلے شوے وهٔ. لکه چې يو بل ارمان خاورې ايرې شوے وهٔ.

د باسفورس سينه هم د سمندر سينه وه. د پېړيو پېړيو د رازونو نه ډکه! هلته د اسمان لمنې سرې شوې، دلته د استنبول د لوے جومات د منارو نه د اذان غږونه پورته شو او شيخ الاسلام پهٔ خپله مراقبه کښې ډوب ناست خپلو تسبو له نور هم زور ورکړو!

يوه پلوشه زما پهٔ سترګو کښې لکه د خوب وځلېده ــــ ما ته، زما احساس ته، زما زړهٔ ته نوره هم رانزدې شوه. د هغې پهٔ ګرمو او نرمو شونډو هم لکه چې څهٔ قيصه ګرځېده. وئيل ئې،

'زهٔ به د شپې د سپوږمۍ د پلوشو کالي پهٔ غاړه کوم او ستا خواله به راځم.'

ما وئيل، 'الله دې راوله!'

مسکې شوه، وئیل ئې،

'زهٔ ستا نه تلې کله یم. زهٔ خو هر وخت ستا سره یم.'

ما خپل زړهٔ ته سر ورښکته کړلو او پهٔ دغه صحرا کښې مې د خپبر د سیمې د یو ارمان ژن شاعر دا اواز واورېدو چې:

دېرو شپو له راشه چې د یو بل نه خبر شو

یاره پهٔ یو شپه د دېرو شپو خبرې نهٔ شي

# ژوند تپوس دے که جواب دے؟

د غني خان سره لیدل او د هغهٔ خبرې اورېدل زما خوب وهٔ. هغه ما پهٔ تي وي لیدلے وهٔ او هغه ما د هغه دور د انقلابي ځوانانو پهٔ سندرو کښې محسوس کړے وهٔ. زما کاکا جي، فضل غني غني د فلسفي غني خان معتقد او نزدے دوست وهٔ او چې کله به هم د ملګرو سره ناست وهٔ، د غني خان د ژوند خوندورې قیصې به ئې کولې چې ټولو به ترې ډېر خوند اخستو.

کاکا جي به د غني خان د ذهانت او خپلې خاورې سره د مینې قیصې کولې او وئیل به ئې چې غني خان د پښتو ادب د شلمې پېړۍ ناویاته شخصیت دے، ځکه چې غني خان پهٔ ورومبي ځل د پښتنو پهٔ ټولنیز ژوند د وهمونو د راخور شادر د شلولو هڅه کړې وه او پښتنو ته ئې د ژوند د بېلا بېلو رنګونو د ښودلو سره سره هغوي ته د مهذبې نرۍ سره د تګ چل هم ښودلے وهٔ. هم پهٔ دغه نوم پهٔ غني خان د کاکا جي مقاله وروستو خپره شوه او د غني خان مینه والو خوښه کړه.

دا د ۱۹۹۰م کال قیصه ده. زهٔ د اووم یا اتم جماعت طالب علم وم. د خپلې مور سره هشنغر ته د ماماګانو کور ته تلے وم. زما د نیکهٔ مور پهٔ حق رسېدلې وه او د غمرازۍ لپاره ډېر خلق راغلي وو. د تنګي د نصرت زو پهٔ بازار کښې د نورو هلکانو سره ولاړ وم چې پهٔ دې کښې یو موټر راغے، ډرائیور ترې نه را کوز شو، د وروستې سیټ دروازه ئې خلاصه کړه او د یو ډېر ښائسته او خنده رویه مشر پهٔ را کوزېدو کښې ئې د هغهٔ سره مرسته کوله. دا غني خان وهٔ. د خلقو او اولس غني خان!

ډرائیور ورته همسا سمه کړه. د خواوشا په دوکانونو کښې ناستو خلقو د ډېرې خوشحالۍ نه رامنډې کړې. غني خان ئې د دواړو لاسونو نه ونیولو او د غمرازۍ د ځائے په لور په مزه مزه روان شو. کاکا جي هم ورته را ورسېد. ما اوربدل چې ورته ئې وئیل،

'بابا! زهٔ ستاسو په راتلو ډېر خوشحاله یم خو ولي خان هم راغلے وهٔ، تاسو ناجوړه هم یئ، ولې مو تکلیف وکړو؟'

غني خان ورته موسکے شو او ورته ئې ووئیل،

'کم عقله! ولي خان به په خپل ځائے راغلے وهٔ او زهٔ په خپل ځائے راغلم.'

په هاغه ورځ ما غني خان په ورومبي ځل د نزدې نه ولیدو او اوس مې هم د هغهٔ د معنې او بې نیازۍ نه ډکه موسکا د زړهٔ او ذهن په دنیا کښې لکه د سپرلي د باد خوره ده.

د نورو زلمو په شان زهٔ هم د غني خان د فکر او تخیّل د رنګونو نه په ورومبي ځل د سردار علي ټکر او ګلزار عالم د سندرو او غزلونو له لارې خبر شوے وم.

وروستو ما غني خان ولوست او د هغهٔ په طنز و مزاح او ټوقو ټقالو کښې مې د لېوني فلسفي خپلې خاورې او خلقو سره د مینې او د بدلون د یو داسې خواهش ځړیکې محسوس کړې چې د مزاحمت ټول دېوالونه ئې په شا تمبول او د یو روښانه او خپلوا که سباوون د بنیاد تیږه ئې کېښودله.

دا زما د عمر یوه جذباتي برخه وه. د خوبونو د لیدلو او بیا د هغې د رښتیا کولو لپاره د هلو ځلو دور وهٔ، د لېونتوب دور وهٔ. غني خان د عمر په دغه مست او لېوني دور کښې زما د عمر ډېر زلمي د پوهې او شعور سره اشنا کړي وو. غني خان د ژوند په هغهٔ مسئلو خبره کول غوښتل، په کومو مسئلو چې خبره کول د کلي د مُلا په نزد کفر او الحاد ګڼلے کېدو.

غني خان د روايت تسلسل هم وۀ او لۀ روايته بغاوت هم. غني خان د خپلې خاورې د لرغونې او سيکولر تاريخ مئين وۀ خو د پښتنو پۀ ټولنه کښې د خورو وهمونو او تيارو د لرې کولو لپاره د رڼا استازے هم وۀ ــــ غني 'غني' وۀ!
د ژوند درياب ته بله کومه غاړه شته او کۀ نۀ؟
تقدير اسماني او نۀ بدلېدونکے دے او کۀ نه د انسان زيار او زړۀ ئې بدلولے شي؟
ولې پښتون د ټوپک لۀ ډزه زيات د مُلا د دم نه وېرېږي؟
ژوند تپوس دے او کۀ جواب؟
سجده تش سر لګول دي او کۀ ځان خاورې کول دي؟
نشه ګناه ده او کۀ د مستۍ د ميو جام د يار پښو کښې کېښودل دي؟
مذهب د زړۀ او روح تسليمېدو ته وائي او کۀ خيام پۀ زور د کعبې طوافونو له بوتلل دي؟
پښتانۀ ولې نشه د باچايانو او خوي خصلت د غلامانو لري؟
دا او د دې پۀ رنګ بلها تپو سونه وو چې غني خان راپورته کول او د خپل ژور فکر، مطالعې، مشاهدې او مينې پۀ رنګونو او د خپل روح پۀ بېقرارۍ کښې ئې ورته ځوابونه لټول ــــــــ

زړۀ مې واچوۀ پۀ تال کښې
د مُلا پۀ پښو مې کېښود
ماوې، دا مې صدقه ده
دا چې څومره زۀ پوهېږم
پۀ طٰهٰ او پۀ يٰسين
دا چې څومره ښکته تلے شي

پهٔ سجده زما جبين
دا چې څو مره اخلي نُور
دا زما خاکي وجود
دا چې څو مره زما وبه
شي څکلے انگبين
مُلا مخ زمانه واړوهٔ
وې، دا څهٔ دي ستا تالي کښې؟
نهٔ پولاو دے نهٔ فيرني ده
نهٔ حلوا نهٔ فالوده ده
وې ئې، شرع ظاهر گوري
او ظاهره تهٔ فاسق ئې
دا د رب سره د مينې
تا را خستې څهٔ قيصه ده
يره يره د قهار نه
د ايمان لويه حصه ده
د جنون او د جانان ستا
څهٔ مهمله فلسفه ده

د غني خان سره د اظهار ډېرې لارې وې. هغه يو کُل وقتي ارټسټ وهٔ. شاعري او مجسمه سازي دوه لو ئې لارې وې چې هغهٔ پهٔ ډېره استاذۍ او هنر پهٔ کار راوستې او د خپل هنر څرگندونه ئې دومره پهٔ اخلاص کوله چې لهٔ يوه کرونده گر نه واخله تر د پوهنتون د استاذه پورې ټولو خوښوله او الهام ئې ترې اخستو.

هم دغه وجه ده چې غني خان د پښتنو د شلمې صدۍ د ادبي او کلتوري تاریخ تر ټولو زورور او قوي حواله ده چې د فکر رنګونه ئې د نړیوال ادب په اسمان لکه د هاغه ستورو پر قېږي چې بې لارې شوو کاروانونو ته د منزل لاره هم ښائي او د منزل معنا هم.

ما مرګي ته شروع کړې
د ژوندون د خېشت قیصه ده
د جنون او د جانان دا
څهٔ عجبه فلسفه ده

# د پراګ قلعه، ښې سړکې او مورنۍ ژبه!

تېر کال مې سپرلے ښه په جوبن کښې وه، د پراګ لارې کوڅې د رنګارنګ ګلونو په خوشبويو معطره وې او د "والتاوا" (Vltava River) درياب په غاړه ډلې ډلې خلق مې زيات تر پکښې د هلکانو او جينکو ټولې وو، ناست وو. چا د فطرت ښائستونه ستائيل او چا ديو بل په سترګو کښې د مينې نوې جهانونه لټول.

زۀ د ښائستونو په دغه خمار کښې د پراګ د باچاپانو د لوئې قلعې پراګ کيسل (Prague Castle) ته په مزل وم. په لاره راسره يوه چيک جينۍ ملګرې شوه. د خبر په خبر نه وروستو ئې راته ووئيل چې په چارلس پوهنتون کښې د اورپائي تاريخ زده کړې کوي.

ما هم ځان ور وپېژندو. نۀ پوهېږم چې د موسم خمار وۀ او کۀ زما په يوائيوالي ئې زړۀ خوږ شو خو په تاريخ، ادب او افغانستان او پاکستان کښې په روانو سياسي حالاتو مو خبرې پېل کړې او چې په ځان پوهېدو نو د پراګ د قلعې په ويخ کښې د انګورو د بوټو په مېنځ کښې يوې ښائسته کېفې ته رسېدلي وو.

ما وئيل تاسو خو ټول لس مليونه خلق يئ، هغه هم د اروپا په زړۀ کښې او سئ او ګېر چاپېره درنه د جرمني، آسټريا او روس په شان لوے لوے طاقتونه دي. دا څنګه وشو چې تاسو وخت په وخت د دغه لويو طاقتونو د واک لاندې پاتې شوئ خو بيا مو هم خپله مورنۍ ژبه ژوندۍ ساتلې ده؟ د سرکار ژبه ده، د کار

ژبه ده، د اقتصاد ژبه ده او د ابلاغ ژبه ده؟

د هغې په سپین مخ د هغې شنې سترګې نورې هم وځلېدې لکه چې په خپل قام، ژبه او تاریخ ئې ډېر ویاړ احساس کړے وي. وئیل ئې، دې پوښتنې ته به د تاریخ په هینداره کښې وګورو. هغې ډېر په قلاره د کافۍ د پیالې نه وړومبے ګوټ وکړو، ما ته ئې په سترګو کښې سترګې راواچولې، وئیل ئې،

"ګوره! مونږ دا خپله ژبه ډېره په شواخوان ژوندۍ ساتلې ده. په کال ۱۶۲۰م کښې د "سپین غرهٔ" د جګړې نه وروستو په مونږ د "هپسبرګ" (Habsburg) باچا زورور شو او زمونږ د کلتور او ژبې په ځاے ئې هر څهٔ جرمن ژبې ته اړول پېل کړل. یواځې دا نهٔ چې هغوي زمونږ ژبه لهٔ مینځه وړل غوښتل بلکې د مذهب په نوم ئې هم په خلقو ظلم زور کولو او بیا په راروانو دوو پېړیو کښې داسې وشوه چې زمونږ مورنۍ ژبه د ریاستي نظام، ادب او پوهنځو نه ورکه شوه. په چیک ژبه کښې لیکلے شوي کتابونه وسوزولے شول او بیا داسې وشوه چې زمونږ ژبه یواځې په کلو بانډو کښې کروندګرو پورې محدوده پاتې شوه.

ما د کیفۍ د کړکۍ نه وړومبے د پراګ د باچایانو لوئې قلعې ته او بیا د هغې په سترګو کښې د تاریخ د جبر په ضد د هغې د اولس د مبارزې نه راولاړ شوي باور ته وکتل. دا جینۍ چې عمر ئې د ۲۲ کالو نه ډېر نهٔ وهٔ، د خپل تاریخ او کلتور نه دومره خبر وه لکه څومره چې د نوي دور د سائنسي، سیاسي او اقتصادي حالاتو نه خبر وه.

ما وئیل، دا خو ډېر لوے تاوان وهٔ خو بیا په دومره خرابو حالاتو کښې مو ژبه ژوندۍ څنګه کړه؟

وئیل ئې، داسې وشوه چې یو خو په کلو بانډو کښې خلقو خپل متلونه، اولسي سندرې او لرغوني توري راټول کړل، خوندي ئې کړل او خپلو بچو ته ئې وریاد

کرل ـــ بله دا چې بیا زمونږ ځینې لیکوالانو دغه متلونه، قیصې او سندرې ولیکلې. په کال ۱۸۰۹م کښې د "یوزیف ډوبروېسکي" (Josef Dobrovsky) په نوم یو لیکوال د چیک ژبې ګرامر ولیکلو. د کال ۱۸۳۴م او کال ۱۸۳۹م په مینځ کښې یو بل ژبپوهاند "یوزیف ینګمین" (Josef Jungmann) په پینځو جلدونو کښې د چیک او جرمن ژبې ډکشنري ولیکله او ځینې سائنسي توري او اصطلاحات ئې جوړ کړل چې بیا وړاندې ئې سائنسي څېړنې ته لاره هواره کړه. دغه شان څه موده وړاندې د فن او هنر په مېدان کښې تحریکونه پېل شول او چیک ژبه چې په کلو کښې راژوندۍ شوه او رو رو ښارونو ته راوغزېده او یو ځل بیا ژوندۍ شوه. نن دا په ټول هېواد کښې وئیلې کېږي، لیکلې کېږي او هره ورځ د نړۍ د مهمو کتابونو ترجمې پکښې کېږي. نن دا د فلم او تهېټر ژبه ده، د سکول د نصاب ژبه ده او د اقتصاد ژبه ده.

مخکښې د دې نه چې ما بله پوښتنه ترې نه کړې وه، هغه را مخکښې شوه، وئیل ئې چې تاسو څومره خلق یئ؟

ما وئیل، مودې وشوې زمونږ خو چا سرشمېرنه نه ده کړې خو د اندازې تر مخه په ټوله نړۍ کښې اویا ملیونه خلق خو به یو.

وئیل ئې، اویا ملیونه خلق خو ډېر زیات دي. ستاسو ژبه خو به ډېره پر مختللې وي؟ ما وئیل، بخښنه غواړم خو زمونږ ډېر خلق په خپله ژبه لیک لوست نه شي کولے او زمونږ د بره طبقې خلقو ته پرې ځان بد ښکاري.

وئیل ئې، وطن مو شته؟ ما وئیل، شته مو خو خپل واک اختیار نه لرو.

هغه چې لکه زما دې خبرو د خپل تاریخ په تېرو وختونو کښې ورکه کړې وه، د یوې اوږدې خاموشۍ نه وروستو ئې ووئیل، یو خبره درته وکړم؟ ما وئیل، څه خبره؟ وئیل ئې، د واک خبره. ما وئیل، وکړه خو مونږ خو د مورنیو ژبو خبره

کوله. وئیل ئې، هوا خو بغېر د ژبې د ژوندی کولو تاسو خپل واک نۀ شی ترلاسه کولے.

نن یو کال وروستو چې پۀ خپل وطن کښې پۀ لکهونو بې کوره شوو خلقو ته ګورم، پۀ بې چاودنو کښې د وژلے شوو پښتنو مړي شمارم، د نصاب پۀ کتابونو کښې د نورو قامونو د اتلانو قيصې ګورم نو د مورنۍ ژبې او واک تر مینځ د اړیکې پۀ اړه د دغه چیکی جینی خبره رایاده شي. خو پوهېږم نۀ چې تاسو ته ئې څنګه روښانه کړم؟



# د کلتورونو تر مینځ تړون او جرمني ته سفر

کال دوه زره اتم (۲۰۰۸) وه. د نومبر میاشت وه. مونږ پنځویشت ملګري د اسلام اباد د نړیوال هوائي ډګر نه دوبۍ ته او بیا د جرمني بون ښار ته لاړو. دا ټول خبریالان، څېړنکاران او د پوهنتون استاذان وو او موخه ئې دا وه چې په بون کښې به د المان غږ د سیوري لاندې د کلتورونو تر مینځ د کمیونیکېشن یا رابطو په موضوع په یو تر بیتي پروګرام کښې برخه اخلو او بیا به دغلته کېدونکے د ګڼدهارا د لرغونو اثارو د یو نندارتون په اړه راپورونه لیکو.

مونږ چې بون ته ورسېدو نو ښه ډېره یخني وه. واورې پرتې وې. مونږ چې د ځان سره کوم کوټونه او سوېټرې وړې وې، په هغو کښې مو هم د موسم یخوالے محسوسوه. یورپ هسې هم یخ دے خو بیا هم دغلته د موسمونو د تغیر له کبله د خلقو د ژوند هلې ځلې هېڅ کله هم نه ودرېږي.

د المان غږ انتظامي راله د ښار په مینځ کښې په یو هوټل کښې د اوسېدو انتظام کړے وه. ما لا په کمره کښې خپل سامان سم کړے نه وه چې چا دروازه وټکوله. چې دروازه مې پرانسته نو یو ځوان مې ولیدو. خپله پېژندګلو ئې وکړه، ووئیل ئې چې جرمني کښې زمونږ د قیام په وخت به راسره ملګرے وي،

لاړشودنه به مو کوي او د دې ځاے د کلتورې، ټولنيزو او اولسي قدرونو نه به مو خبرساتي. د هغهٔ سره پهٔ لاس کښې يو جانماز او د قران پاک نسخه هم وه، را ئې کړل او قبله ئې راته هم سمه کړه. هغهٔ دا هر څهٔ د دې لپاره کول چې کهٔ چرې زهٔ د خپلې عقيدې مطابق عبادت کول غواړم نو چې څهٔ ستونزه راته نهٔ وي. زهٔ اکثر ملګرو ته وايم چې کهٔ اروپا پرمختنګ کړے دے نو لهٔ دې کبله ئې نهٔ دے کړے چې ګنې اروپا بربنډه ده يا د مُليانو د خبرې پهٔ روئ فحاشه ده ـــ اروپا د دوو جهاني جنګونو نه وروستو خپله ټولنه پهٔ مينه، امن او علم ودرولې ده. مذهب د هر چا ذاتي معامله ده خو د هېواد قانون به غريب هم مني او مالدار هم، مُلا به ئې هم مني او دوکاندار هم، د پارلېمان غړے به ئې هم مني او د ټېکسي ډرائيور هم. اروپا پوهنتونونه او څېړنيز مرکزونه لري چرته چې د ژوند د بېلابېلو اړخونو او انسانانو ته پهٔ ورپېښو ستونزو څېړنې کېږي. دا مونږ ته چې زمونږ پهٔ کلو ښارونو کښې د مذهبي ډلو مشران او مُليان د اروپا د بې لارې کېدو کومې قيصې کوي او څنګه سپکاوے ئې چې کوي، داسې هېڅ خبره نشته. اروپايانو ځان د وهمونو او د مُلا د فرېبونو نه ازاد کړے دے. هغوي چې څهٔ هم کوي نو د علم، شعور او څېړنو پهٔ بنياد ئې کوي.

بله ورځ مو د المان غږ يا "ډوچې ويلې" (Deutsche Welle) پهٔ لوےتعمير کښې تربيتي پروګرام پېل شو. کوم استاذان چې به راتلل، ټول د خپلو خپلو شعبو يا څانګو ماهرين وو، عالمان وو او د زده کړو طريقه ئې دا وه چې زمونږ سره د بېلابېلو کلتورونو ترمينځ د رابطې پهٔ موضوع بحثونه وکړي او زمونږ پهٔ ذهنونو کښې نوې نوې پوښتنې راولاړې کړي.

د دوي د علم دوستۍ د دې نه لوے ثبوت څهٔ کېدے شي چې کوم لرغوني اثار زمونږ پهٔ خپل وطن کښې د بېلابېلو خطرو سره مخ دي، د هغې خپلو اولسونو

ته د ښودلو لپاره يې د اروپا د بېلابېلو هېوادونو په مرکزونو کښې د ننداارتون بندوبست کړے وۀ. هره ورځ به د پوهنتونونو استاذان، زده کوونکي، څېړن کاران،د هنر مينه وال او عام اولس د دغې ننداارتون ليدو له راتلل او د چارسدې، مردان او سوات نه راوړے شوو د کنډهارا آرټ دغه ناياب نمونو ته به ګوته په خوله کېدل.

زمونږ سره په بحثونو کښې به اکثر دا پوښتنه مخې ته راتله چې په کومه خاوره دومره ستر او سپېڅلو هنرونو وده کړې ده، هلته د تشدد او وينو تويول څۀ معنا لري؟ دا يو ډېر لوے بحث وۀ ځکه چې مونږ د قام په حېث د تاريخ په اوږدو کښې د خپل کلتور او تهذيب د سرچينو نه راپرېکړے شوي يو او بيا په پاکستان کښې چې کله د فوځي ډکټېټر ضياء الحق اسلام راغے نو زمونږ د تاريخ، کلتور او تولنيزو قدرونو په ضد دغه کمپائن نور هم ګړندے شو او په مونږ د مذهب يو داسې شکل راوتپلے شو چې د هغې بنياد په جنګ جګړو او نفرت ولاړ وۀ. د رياست له خوا زمونږ د ښۀ مسلمانانو جوړولو لپاره او مونږ په افغانستان کښې د روس خلاف د جنګولو لپاره په زرګونو مدرسې جوړې شوې، چرته چې د جهاديانو په تيارولو لاس پورې شو. موسيقي، هنر، شاعري، روايتي اتنونه، مجسمه سازي او ټول ښکلي هنرونه لويه ګناه وګرځولے شول او دغه شان خبره دې ته راورسېده چې نن په دغه خاوره د خلقو سرونه پرې کېږي، سکولونه په بمونو الوځولے کېږي او تر دې چې د عبادت په ځايونو کښې هم بمي چاودنې کېږي.

زمونږ د دې تربيتي پروګرام مشر "ډاکټر هيلمټ اوسانګ"( Helmut Osang) وۀ چې خپله هم خبريال وۀ او د پرمختيائي زده کړو په موضوع يې د ډاکټرېټ ډګري لرله. يو ډېر لوے عالم او خنده رويه سړے وۀ. زمونږ د

وطن پهٔ ستونزو او مونږ ته پهٔ راپېښو چېلنجونو زمونږ نه ښهٔ خبر وهٔ. هغهٔ به هر چا ته غوږ کېښودو او چې څهٔ نوې خبره به ئې واورېده نو د ځان سره به ئې وليکله. زمونږ د وطن د پوهانو يوه ستونزه دا ده چې اورې کم او وائې ډېر. دوي وائي چې هم د دوي خبره سمه ده او ټوله دنيا دې هم بس دوي ته غوږ کېږدي.

بون د مغربي جرمني يو زوړ او تاريخي ښار دے چې د "راثن (Rhine River) درياب پهٔ غاړه اباد دے. دلته د جرمن د چانسلر او نورو لوړ پوړو چارواکو دفترونه، کاروباري مرکزونه او لوے لوے پوهنتونونه (upper echelons) دي. هم دلته پارليماني کونسل پهٔ کال نولس سوه نهه څلوېښتم (۱۹۲۹م) کښې د جرمن فيډرل ريپبلک دستور جوړ کړے او منظور کړے وهٔ. د راثن درياب غاړه ډېر رومانوي ځاے دے چرته چې پهٔ رېستورانونو او د خوشحالۍ پهٔ نورو ځايونو کښې خلق راټولېږي او د دغه ځاے د ښکلا نه خوندونه اخلي.

ما چې به هر سحر د خپل هوټل د کړکۍ نه کتل نو پهٔ ډلو ډلو ماشومان به د سکول پهٔ بسونو، موټرو او پيادهٔ خپلو زدهٔ کړو له روان وو. د هغوي پهٔ مخ به د خپل قام پهٔ تاريخ وياړ او د مستقبل لپاره د هيلو رڼاګانې پرقېدې. هغوي ديو ازاد او خپلواکه قام بچي وو او هېڅ وېره ئې نهٔ محسوسوله چې ګنې څوک به ئې پهٔ زور زياتي د خپلو زدهٔ کړو نه راوګرځوي. زهٔ چې دا ټکي ليکم نو پهٔ خيبر پښتونخوا اوقبائيلي سيمو کښې پهٔ زرګونو سکولونه وران پراتهٔ دي او پهٔ لکهونو ماشومان د زدهٔ کړو نه بې برخې کړے شوي دي.

پهٔ دې تربيتي پروګرام کښې زمونږ سره د اسلام اباد يوه جينۍ هم وه چې خاوند ئې پهٔ فوځ کښې مېجر وهٔ. خبرياله هم نهٔ وه خو نهٔ پوهېږم چې د ګندهارا اُرټ پهٔ موضوع پهٔ دې پروګرام کښې چا څنګه او ولې ځاے کړې وه؟

وشوه داسې چې د کورس استاذ يوه ورځ پوښتنه وکړه چې هغوي د جرمني د

کومو نومړو شخصیاتو په اړه معلومات لري او څوک يې خوښېږي؟ دغې جینۍ تر ټولو وړاندې ډېر په فخر ووئيل چې هغه د هټلر نه ډېره متاثره ده او دا چې په پاکستان کښې خلق هټلر ډېر خوښوي. د استاذ په مخ د مایوسۍ نخښې ښکاره شوې لکه چې په دې خبره بالکل نه وي خوشحاله شوے. د لږې خاموشۍ نه وروستو هغه ووئيل چې په جرمني کښې اکثریت خلق هټلر نه خوښوي او هغه ځکه چې د هغه نوم د جنګ او نفرت سره تړلے دے ـــ د هغه د جنګي پالیسیو له کبله جرمنیان د جنګونو او مصیبتونو ښکار شوي وو، له دې کبله هغوي هټلر ته د یو اتل په سترګه نه ګوري. هغه وئیل چې جرمني ډېر لوے لوے پوهان، سائنسدانان، موسیقاران او هنرمندان زېږولي دي او که څوک د جرمني سره مینه کول غواړي او په جرمني ځان پوهول غواړي نو بايد چې دغه عالمان او هنرمندان وپېژني او د هغوي د لوے علمي کار نه ګټه پورته کړي.

په بون کښې د افغانستان او پښتونخوا نه راپه کډه شوي ډېر پښتانه هم ژوند کوي او دغلته د "پشتون سوشل ډیموکراټک ګوند" په نوم خپل یو ګوند هم لري. د دې ګوند د راجوړولو او قائم ساتلو لپاره خدائے بخښلي ډاکټر کبیر ستوري ډېر زیار باسلے دے. اوس هم د هغه بچي او په خاص توګه نصیر ستورے پښتنو ته په وړېښو ستونزو غونډې راجوړوي او د پښتونخوا نه سیاستدانان او پوهان د بحثونو لپاره راغواړي.

په بون کښې یو ډېر سپېڅلے او په قام مئین پښتون هدایت بنګش دے چې ډېره موده وړاندې دلته راغلے او د خپل کور او اور خاوند دے. هغه زمونږ په راتلو ډېر خوشحاله شو او سره د ډاکټر شاهجهان خان او خبریالانو ملګرو عرفان اشرف او فخر کاکاخېل يې زه یو ماښام خپل کور ته راوبللم. د هغه

مېرمن الماني ده خو په پښتو ژبه خبرې هم کولې شي او د پښتنو د دود دستور نه هم خبر ده. زمونږ ئې ډېر تود هرکلے وکړو. په پښتو کښې ئې راته سترې مه شې وکړل او ډېر خوندور خوراکونه ئې راله تیار کړي وو. زۀ د یو پښتون او یوې الماني ښځې تر مینځ د مینې او احترام دې رشتې او خپلولۍ ته ډېر خوشحاله شوم او په دې خبره نور هم باوري شوم چې کۀ د کلتورونو تر مینځ د نفرت او تعصب په ځاے د مینې او امن د رشتو د پیاوړي کولو او په یو بل د پوهېدو لپاره کار وشي نو دا نړۍ د امن او مینې کور جوړېدے شي.

# دا خاوره او دا خلق؟

دا خاوره د ګندهارا ځانګو، د امن کور ـــ دا خلق د جنګ خوراک. دا خاوره د فطرت په رنګونو او خوندونو ښائسته ـــ دا خلق بې رنګه، بېخونده ـــ نه ساز لري نه سوز، نه هنر شته نه اتڼ. دا خاوره د لعلونو خزانه، دا خلق نه مال لري نه دانې، نه نن لري او نه سبا ـــ په کورهم مسافر، بهرهم مسافر ـــ د دهٔ نه ګېر چاپېره قامونه بدل شو، د ژوند لارې بدلې شوې خو دے بدل نهٔ شو، د دهٔ قسمت بدل نهٔ شو ـــ جمود نور څهٔ ته وائي؟ زوال نور څهٔ ته وائي؟

دا د شلمې پېړۍ د ورومبي نيمائي خبره ده. د دې خاورې يو باچا وهٔ چې دا خلق ئې په تيارو کښې نهٔ وو خوښ. د هغهٔ نوم امان الله خان وهٔ ـــ غازي امان الله خان! هغه د جنګ او ډپلومېسۍ د دواړو مېدانونو سپهٔ سالار وهٔ. هغه پهٔ اولس باچا نهٔ وهٔ، د اولس باچا وهٔ. د هغهٔ پهٔ باچاهۍ کښې افغانستان د يرغلګرو د جنګ مېدان نهٔ وهٔ، سوالګري نهٔ وه، بفر ستيټ نهٔ وهٔ ـــ افغانستان خپلواکه وهٔ، ازاد وهٔ او د خپل تقدير پهٔ خپله مالک وهٔ.

هغهٔ پهٔ افغانستان کښې د ټورې او ټوپک پهٔ ځائے د کتاب او قلم باچاهي غوښته. هغهٔ دغه خورو ورو قبيلو لهٔ د نوي ژوند يو دستور ورکړے وهٔ. هغهٔ وئيل چې ښځه انسان دے، حقونه لري، عزت لري، حرمت لري ـــ ښځه نوکره نهٔ ده، ښځه د کور شريکه مالکه ده. ښځه د نوي نسل مور او لارښوده ده، ملګرې ده، مينه ده، ښائست دے ـــ سپکه نهٔ ده، بې ننګه نهٔ ده، بې الهامه نهٔ ده.

د هغهٔ افغانستان پهٔ علم او شعور ولاړ وهٔ. د هغهٔ افغانستان د وهمونو جاله نهٔ وه. د هغهٔ افغانستان، "کوسموپولیتن"(Cosmpolitan) وهٔ، د نړۍ د پرمختللو هېوادونو سره څنګ پهٔ څنګ د تلو جوګه وهٔ. د هغهٔ افغانستان پهٔ رنګونو ښائسته وهٔ، پهٔ لوګو تور او پهٔ وینو سُور نهٔ وهٔ.

خو د هغهٔ افغانستان د چا خوښ نهٔ وهٔ. د هغهٔ پهٔ افغانستان کښې د جهالت خېر نهٔ وهٔ. د هغهٔ افغانستان د یرغلګرو د لارې دېوال وهٔ نو ځکه نړول ئې اړین وو.

د کال نولس سوه اته ویشتم (۱۹۲۸) خبره ده. باچا اروپا ته ځي، ملکه ثریا ورسره هم ملګرې ده. پهٔ اروپائي پلازمېنو کښې ئې تود هرکلے کېږي. د باچایانو او ریاستونو د مشرانو سره ګوري. پهٔ هسک سر د خپلې خاورې استازیتوب کوي او د خپل اولس لپاره د پرمختیا نوې لارې او نوي فکرونه ګوري.

خو هغه چې د کومې خاورې د ننګ خبره کوي، پهٔ هغه خاوره څو مُلیان پهٔ هغهٔ د کفر او بې ننګۍ تورونه پورې کوي ــــ بغاوتونه را اوچتېږي او د غلو د یو لښکر د مشر، باچا سقاو پهٔ مشرۍ کښې اولس د خپل باچا پهٔ ضد راپاڅي او د افغانستان پهٔ ضد راپاڅي. د غلو باچا د افغانستان باچا کېږي او د اولس باچا لهٔ خپلې خاورې پهٔ تېښته مجبوره کېږي.

نوے باچا تر ټولو وړومبے کار دا کوي چې لهٔ ارګه ټول ګلونه ربېي او سبزیانې پرې کري. د جینکو ښوونځي تړي، د پرمختیا ټولې منصوبې رانغاړي او د اسلام د خدمتګار پهٔ شکل کښې پهٔ دغه خاوره د نفرت، تنګ نظرۍ او وهمونو تخم کري. دا خاوره هم لکه چې د کربلا خاوره وي!

# بيا به د کلي په مينځ نه ځم

نن زه د يو عجيبه احساس سره مخ يم ـــ دا احساس ما د ملاکنډ په غرونو پورېباسي او د سوات ښائستونو ته مې رسوي. زه په لاره پروت د پښتنو د يوسفزو قبيلې د مشر ملک احمد په مزار راتېر شم. د بريکوټ نه بره د شنکردار ستوپې مخې ته ودرېږم. زه د دغو کنډرونو او قبرونو په رنګو شوو دېوالونو او خړو خاورو کښې د خپل ورک شوي تاريخ نخښې نخښانې ګورم. زما نه ورک شوي خپل ځان پسې ګرځم!

زه په جهان اباد کښې د بدها (بودا) وران شوي مخ ته وګورم او ما ته ښکښې يو خوا د ملالې وران کړے شوے مخ ښکاره شي او بل خوا د خپلې ټولنې... د رياست پاکستان!

د سټراتيژيکي ګټو جنګ يوا ځې تعميرونه نه دي رنګ کړي، ښوونځي ئې نه دي برباد کړي، زمونږ د اولسي او کلتوري ژوند بنيادونه ئې هم نړولي دي. يوا ځې خلق ئې نه دي وژلي، د اولس جذبه او وجدان ئې هم وژلے دے. په سوات کښې د "Awakening" په نوم د يوې مدني ټولنې څېړنه وائي چې په دغه سيمه کښې په ۲۰۱۵م کال کښې يو شپېته (۶۱) ښځې د غېرت په نوم وژلې شوې دي، يو سل يو شپېته(۱۶۱) ښځو، جينکو د ځان د وژلو هڅه کړې ده، پينځه (۵) ښځې تېښتولې شوې دي، په دوه سوه پنځوس(۲۵۰) ښځو په کور کښې د خاوند او خپلو خپلوانو له خوا تشدد شوے دے او د پنځلسو(۱۵) ښځو عزتونو ته لاس اچولے شوے دے. په سوره کښې د ښځو ورکول او يا د ښځو خرڅول ځان له يوه بله دردوونکې موضوع ده.

په سوات کښې د ښځو د حقونو فعالین وائي چې جنګ د خلقو اقتصاد ټوټې ټوټې کړے دے او ډېر غریب خلق مجبوره دي چې خپلې خوېندې لونړه د پېسو په بدل کښې د نورو صوبو داسې خلقو له ورکړي چې نهٔ ئې پېژني. وروستو یا خو دا ښځې ورکې شي او یا ډېر د بې وسۍ او زړهٔ چاودون سره ژوند تېروي.

پرون دا ښځه مُلا د مذهب په نوم د زده کړو نه بې برخې کړه، په کور کښې ئې زنداني کړه او د جنت په نوم ئې ترې کالي پټري واخستل او نن د خپل ورور، پلار او خاوند د لاسه په وینو ولمبېده. دا ښځه چې د پښتون د ننګ او غېرت شمله وه، نن د روایت په دار وځنګېده! دا ښځه څومره بدبخته ده؟ کېدے شي چې وران شوي کورونه او ګودرونه سر دوباره بیا جوړ شي خو فکر نهٔ کوم چې وران شوي زړونه به بیا جوړ شي.

بیا به د کلي په مینځ نهٔ ځم
د مامونړ د سر قاتل به پکښې وینه

# زه درباري تاریخ دان نه یم!

په یو داسې وطن کښې چرته چې د ریاست ټول نظام د دروغو او بې ایمانۍ په بنیادونو ولاړ وي، هلته رښتیاوئیل ایمان غواړي، پوهه غواړي او د زمري هومره غټ زړه غواړي. داسې خاوره چرته چې د نصاب کتابونه د فرضي قیصو او د میړیا چېنلونه له دروغو او "سینسېشنلزم"(Sensationalism) نه ډک دي، هلته د تاریخ سمولو خبره ګناه نه ده نو نور څه دي؟

ډاکټر سید وقارعلي شاه د اسلام اباد په قائداعظم پوهنتون کښې د تاریخ استاذ دے، د دولسو کتابونو لیکوال دے، ریښتینے دے خو پښتون دے.

ډاکټر صاحب د کډوانو پاڼې نه دي وئیلې بلکې د اکسفورډ غوندې پوهنتون نه ئې د ډاکټرۍ سند ترلاسه کړے دے.

هر څوک که په پاکستان کښې څوک د ریاست له خوا د جوړو شوو لارو نه اخوا دېخوا نه شي تلے، بیا هم نه د تاریخ مخه څوک نیولے شي او نه د رښتیاو. د هندوکش په لمنو کښې که یو خوا مست سپرلي راټوکېږي نو بل خوا ازاد او خپلواکه فکرونه هم رازرغونېږي. کېدے شي چې په یونان کښې یواځې یو سقراط د خپلو رښتیاو د سزا په توګه د زهرو پیاله په سر راړولې وي خو د پښتنو د خاورې انسانان خو څه کوې چې هغه کاڼې بوټي ئې هم شهیدان دي.

وخته! دلته چې قدم ږدې نو په خیال ږده!
د دې خاورې کاڼي بوټي شهیدان دي

د تیارې او رڼا جنګ ازلي دے. رښتیا او دروغ په یو ځاے نه شي پاتې کېدے

او اور او او بهٔ دیو بل دښمنان دي.

د نومبر د میاشتې پهٔ پنځویشتمه نېټه ډاکټر سید وقار علي شاه پهٔ شاه عبدالطیف یونیورستۍ خېرپور کښې یو کانفرنس ته د خپلې مقالې "آئډینټیټي کرائسیز اینډ د ریسپانسبیلیټي آف پاکستاني هسټاریېنز" (Identity Crisis and the Responsibility of Pakistani Historians) اورولو پهٔ وخت پهٔ دې خبره زور ورکړو چې باید پاکستاني تاریخ دانان خلق لهٔ تیارو راوباسي او رښتیا ورته ووائي.

نوموړي زیاته کړه چې باید د باچاخان، عبدالصمدخان اڅکزي، جي ایم سید، ولي خان، بګهت سنګهه او پیر صبغت الله شاه غونډې روشنفکره او د ازادۍ د تحریک نوموړو قهرمانانو ژوند ته هم کتنه وشي، کار پرې وشي او نوي کهول ته وښودلے شي. ډاکټر صاحب د کانفرنس ګډونوال پهٔ دې خبره پوهه کول غوښتل چې د تاریخ لار سمول غواړي.

څو ورځې پس د پوهنتون وائس چانسلر ډاکټر جاوید اشرف ډاکټر سید وقار علي شاه خپل دفتر ته راوغوښتو او ورته ئې ووئیل چې چا ورته وئیلي دي چې پهٔ دغه کانفرنس کښې د پاکستان پهٔ ضد خبرې شوې دي. ډاکټر صاحب وائي– ما ورته وخاندل ځکه چې پهٔ دغه کانفرنس کښې وائس چانسلر پهٔ خپله هم ناست وهٔ.

تر ملاقات درې ورځې وروستو وائس چانسلر ډاکټر صاحب ته فون وکړو، وارخطا وهٔ، وئیل ئې، پهٔ ما ډېر فشار دے. هغهٔ وئیلے نهٔ شو خو غوښتل ئې چې ډاکټر وقارعلي شاه د پوهنتون تر سیورې لاندې د څېړنیزې ادارې د ډائریکټرۍ چوکۍ پرېږدي.

ډاکټر صاحب هم پوهه شو او دیو بېبا که او ریښتیني پښتون پهٔ حېث ئې ورته

درې خبرې وکړې.

وړومبی دا چې یوائې ډائریکټرې غواړې که نهٔ د تاریخ د څانګې د چئیرمېن چوکۍ درته هم پرېږدم؟ — دویمه دا چې زهٔ درباري تاريخ دان نهٔ يم چې د دربار لهٔ خوا راجوړ شوے تاریخ به ښايم — او دریمه دا، هغه وخت تېر شوے دے چې مونږ به لهٔ خلقو لهٔ پاکستان سره د وفادارۍ سرټیفیکېټ غواړو.

د نومبر پهٔ دریمه نېټه وائس چانسلر ډاکټر جاوید اشرف د یو لیک لهٔ لارې ډاکټر وقار علي شاه د تاریخ او کلتور د څېړنیزې قامي ادارې لهٔ مشرۍ څخه لرې کړو او د لرې کولو څهٔ وجه ئې هم ونهٔ ښودله.

د مارګلې پهٔ لمن کښې زور یو څل بیا لمغرې وکړې، دروغو بیا یرغل وکړو خو د هندوکش پهٔ سر د یو لېوني دا خبره ټولو تللیو او راتلونکو وختونو واورېده چې:

"زهٔ درباري تاريخ دان نهٔ يم!"

# يار مي هندو زهٔ مسلمان يم!

دا پهٔ سوات کښې د ژمي د يوې شپې قيصه ده. دا يلم د غرهٔ پهٔ سر د واورو سپين څادر خور وهٔ او د مرغزار پهٔ لمن کښې د راتلونکي سپرلي اميدونه پهٔ خوږهٔ خوب اودهٔ وو. مونږ د يو ملګري پهٔ حجره کښې راټول شوي وو. خوا ته د بدهايانو د وختو د يو کنډر پهٔ غېږه کښې د دې خاورې د امن او مينې يادونو غزونې کولې.

خو د سوات د سيند نه هغه خوا ته يو مُلا د شريعت پهٔ نوم، د مذهب پهٔ نوم، د انصاف پهٔ نوم د خلقو د ژوند سره لوبې کولې. وېره وه، دهشت وهٔ، بې يقيني وه او خاموشي وه او يوه بې لارې کوونکې خاموشي!

بيا هم د ژوند لاره څوک نيولې شي؟ سندره څوک څنګه د پښو لاندې کولې شي؟ ظلم کهٔ هر څومره ډېر شي، هيلې او اميدونه نهٔ شي وژلے. تيارې چې هر څومره ډېرې شي، د سبا ستر که خو به راخېژي.

د حجرې پهٔ دغه کوټه کښې د سوز او ساز محفل، د ښائست سندرې، د ژوند خبرې او د رنګ قيصې پهٔ خپل جوبن کښې وې. دا هر څهٔ کهٔ يو خوا د زړهٔ د زخمونو دارو وو نو بل خوا د روان ظلم پهٔ ضد يو احتجاج هم وهٔ ـــ يو ښائسته او زورور احتجاج!

پهٔ دې محفل کښې د عقيدو پهٔ بنياد، د رنګ او نسل پهٔ بنياد، د تور او سپين پهٔ بنياد څهٔ فرق نهٔ وهٔ، امتياز نهٔ وهٔ. ټول ملګري وو. ټول د يوې خاورې بچي وو او ټول يو مار خوړلي وو!

نيمه شپه شوه. د رباب ساز او د منګي اهنګ هره ساه خمار او هره تپه مېخانه کړه. د زړهٔ پهٔ جهان کښې يو اودهٔ شوي، خاموشه شوي او ژوبل شوي احساس بيا سر راپورته کړو.

يار مې هندو زهٔ مسلمان يم
د يار لپاره درمسال جارو کومه

پهٔ دې خاوره د بېلا بېلو عقيدو د منونکو تر مينځ د مينې د ترون د دې نه ښهٔ اظهار نور نهٔ شي کېدے. دوه عقيدې، دوه مذهبونه خو تاريخ يو دے، سماج يو دے او د مينې او انسانيت رشته يوه ده. لږه شېبه تېره نهٔ وه چې زمونږ د يو هندو ملګري سترګې لهٔ اوښکو ډکې شوې.

لکه دې تپې (لنډۍ) هغه د تاريخ پهٔ لارو کښې د نوو پوښتنو سره مخ کړے وهٔ — لکه د هغهٔ چې پهٔ خپلو غوږونو باور نهٔ راتلو. هغه غصه هم وهٔ او بې وسه هم — وئيل ئې چې هره دوېمه درېمه ورځ ورته ټېليفونونه راځي، بد رد ورته وئيلے کېږي او د مرګ ګواښونه ورته کېږي.

مونږ د هغهٔ د دم دلاسه کولو هڅه کوله خو د هغهٔ اوښکې داسې راروانې وې چې کهٔ چرې نن راتوې نهٔ شي نو د هغهٔ سينه به وشلېږي. هغهٔ بار بار هم داخبره کوله چې زهٔ د دې نه انکار نهٔ کوم چې زهٔ هندو يم خو ولې زهٔ پښتون نهٔ يم؟ وئيل ئې د مرګه نهٔ وېرېږم، زړهٔ مې چاودے څکه دے چې اوس مې خلق د مور پلار او د کورنۍ د نورو غړو سپکاوے کوي. هغهٔ وار پهٔ وار هم دا خبره کوله چې کهٔ چرې ستاسو سره داسې وشي نو تاسو به ئې معاف کړئ؟

مونږ ټول د رياست د تورې بلا په پنجه کښې وو، ټول زورېدلي وو خو په مونږ ټولو کښې هغه دېر بې وسه وو ـــ ځکه چې هغه په خپله خاوره په خپل کور کښې نه چا پښتون ګڼلو او نه انسان.

د جنازې بازو مې نيسه
چرته به ما په راسته خوله درکړې وينه

# زهٔ يو انقلاب پېژنم

پهٔ پاکستان کښې د پخواني فوځي ډيکټېټر ايوب خان لهٔ صنعتي انقلابه راواخله تر پخواني وزير اعظم ذوالفقار علي بهټو د سوشلسټ انقلابه پورې او د پخواني جنرال او صدر ضياء الحق، د جماعت اسلامي او د نورو مذهبي ګوندونو پهٔ ګډون د مسلم ليګ تر شنهٔ انقلابه پورې، بيا د عوامي نېشنل ګوند او نورو کينړ لاسو سياسي ګوندونو تر سرهٔ انقلابه بېلابېل نومونه مخې ته راغلي دي، سياسي ماحول ئې تود کړے دے. بحثونه ئې راپاروِلي دي خو ډېر زر تېر شوے دے او بيا لهٔ خلقو هېر شوے دے.

انقلاب بدلون راولي خو دغه انقلابونو هاغه بدلونونه نهٔ دي راوستي د کومو چې ئې دعوې کړې وې.

د پښتنو پهٔ نوي تاريخ کښې د يو پښتون پهٔ توګه زهٔ پهٔ دې خاوره يو انقلاب پېژنم او هغه د مې پهٔ لسيزه ۱۹۳۰ کښې د باچاخان د خدائي خدمتګار تحريک هاغه انقلاب وهٔ چې د هندوکش پهٔ لمنو کښې ډېره پښتانهٔ ئې رابېدار کړل. سياسي شعور ئې ورکړو او د عدم تشدد لهٔ لارې ئې قامي مبارزې ته تيار کړل.

پهٔ پاکستان کښې د ترهګرۍ د بې شمېره پېښو او پهٔ فوځي عملياتو کښې د لکهونو خلقو لهٔ بې کوره کېدو وروستو اوس يو ځل بيا د ازادۍ او انقلاب خبرې کېږي، بحثونه کېږي او د ميډيا پهٔ چېنلونو داسې سياسي مشرانو ته څلورويشت ساعته وخت ورکولے کېږي چې د طاقت سرچشمه ئې اولس نهٔ بلکې د هېواد مقتدره حلقې دي.

زهٔ د ازادۍ پهٔ نامه د يو سياسي ګوند پهٔ لاريون څنګه باور کولے شم، کله چې

په قبائيلي سيمو کښې په لکهونو پښتانهٔقبائيل د ازادۍ د اتهٔ شپيته کلونو باوجود تر يو غېرانساني نظام لاندې ژوند کوي او لهٔ بنيادي انساني حقونو بې برخې دي.آيا په دې ازادي مارچ کښې د دغه قبيلو د ازادۍ او هغوي ته د هېواد د يو شان اوسېدونکو د حقونو خبره يا وعده شوې ده؟ زهٔ خو دا فکر کوم چې ازادي مارچ بايد د لاهور په ځاے لهٔ خېبره يا وزيرستانه پېل شوے وے، ځکه چې د دغه سيمې اولس تر اوسه د پوليټيکل اېجنټ او وسله والو ډلو غلامان دي.

خو ورو مېے راځئ چې د انقلاب خبره وکړو چې انقلاب څهٔ ته وائي؟

د يو تاريخي عمل په توګه، انقلاب د هاغه غورځنګ په معنا دے چې اکثر لهٔ تشدده ډک وي او موخه ئې د يو زوړ نظام لهٔ مينځه وړل او د ټولنې په اساسي ادارو کښې يو پياوړے بدلون راوستل وي.

په اتلسمه عيسوي پېړۍ کښې د فرانسيسي انقلاب په نتېجه کښې بادشاه لهٔ تخته راګزار کړے شو او لهٔ اول سرنه راواخلئ تر بېخه د ټولنو د بيا جوړولو هڅې وشوې. هم لهٔ هغهٔ وخته انقلاب او تشدد لهٔ يو بل سره تړلي تکي وګرځېدل.

په شلمه عيسوي پېړۍ کښې ډېرو انقلابي مشرانو په ۱۹۱۷م کال کښې د "ولاديمير اېليچ لېنن" (Vladimir Ilyich Lenin) په مشرۍ لهٔ روسي انقلابه الهام واخستو. لېنن د "کارل مارکس" (Karl Marx) په دې خبره باور لرلو چې د ټولنې لپاره د تاريخ د يو پړاو نه بل پړاو ته د تګ لپاره انقلاب اړين او مهم دے. په شلمه عيسوي صدۍ کښې د ايران انقلاب، د انقلابونو يو بله نمونه ده. په ايران کښې د ۱۹۷۹م د انقلاب موخه دا وه چې ګني ټولنه ډېره سيکولر شوې ده او غربي قدرونه او کلتور وربانديې غالب شوے دے نو د دې

لپاره د اسلامي اصولو او قدرونو په رڼا کښې د ټولنې بیا جوړښت پکار دے. زۀ به په دې لاریونونو کښې هله د شریکېدو فکر کوم چې ما ته په دې خاوره کښې د خپل ژوند او قامي وجود په اړه د ځینو پوښتنو جواب ترلاسه شي.

شلمه پېړۍ د انقلابونو په سبب امتیاز لري چې د نړۍ په ډېرو سیمو او هېوادونو کښې د اروپائي او امریکائي امپراتورۍ (Imperialistic) په ضد خلقو پاڅون وکړو او انقلابونه ئې راوستل.

انقلاب په ټولنه، کلتور، اقتصاد او سیاسي ادارو کښې لوے بدلونونه راولي.

د برصغیر د ازادۍ ستر مبارز خان عبدالغفار خان "باچا خان" وېنا ده چې انقلاب عالمان او پوهان غواړي. د انقلاب لپاره وړومبۍ خبره هم دغه ده چې د ټولنې د سیاسي، کلتوري او اقتصادي ستونزو پوهه ترلاسه کړلې شي، د هغې تجزیه وشي او بیا د دغه ستونزو په نتیجه کښې د اولس غوښتنې اوسیاسي فکر منظم کړے شي او د سیاسي انقلابي نظریې یا مفکورې په شکل کښې اولس ته په داسې انداز وړاندې کړې شي چې د ټولنې ټول غړي ورباندې پوهه شي. د دغه پوهې په نتیجه کښې وړومبے د انقلاب هدف ټاکلے کېږي او د دغه هدف په لور دا مزل پیل کېږي. انقلاب د عمل نوم دے، تشې خبرې او ادعاوې ټولنه نۀ شي بدلولے. د انقلاب لپاره دا خبره هم مهمه ده چې اولس په کومو حالاتو کښې ژوند کوي نو چې لۀ هاغه حالاتو بېزاره وي، غصه وي او د سیاسي عقیدې په بنیاد دغه حالات بدلول غواړي.

د پښتنو په نوي تاریخ کښې د یو پښتون په توګه زۀ په دې خاوره یو انقلاب پېژنم او هغۀ د ۱۹۳۰ مۍ په لسیزه کښې د باچاخان د خدائي خدمتګار تحریک هاغه انقلاب وۀ چې د هندوکش په لمنو کښې دېره پښتانۀ ئې رابېدار کړل، سیاسي شعور ئې ورته ورکړو او د عدم تشدد لۀ لارې ئې قامي مبارزې ته تیار

کړل.

دغې انقلاب دا وطن د پیرنګي له غلامۍ ازاد کړو او دا اوس چې پښتانه څه نه څه سیاسي شعور لري، هم د دغه انقلاب برکت دے. دغه انقلاب ولې خپل منطقي انجام ته ونه رسېد، دغه یو جلا بحث دے.

زه به په دې لاریونونو کښې هله د شریکېدو فکر کوم چې ما ته په دې خاوره کښې د خپل ژوند او قامي وجود په اړه د ځینو پوښتنو جواب ترلاسه شي.

په موجوده حالاتو کښې له سواته تر وزیرستانه په زرګونو تعلیمي ادارې په بمونو الوځولې شوې دي. آیا په دې انقلاب یا ازادۍ لاریون کښې د دغه تعلیمي ادارو د بیا جوړولو څه پلان وړاندې کړے شوے دے؟

د ترهګرۍ په پېښو او بریدونو کښې په زرګونو پښتانه ماشومان، سړي او ښځې وژل شوي دي. په دې لاریونونو کښې د دغه شهیدانو د وینې څه ذکر شته او په دغه پېښو کښې ککړو خلقو ته د سزا ورکولو څه اصول ټاکلے شوي دي او که نه؟

د پښتنو وطن له قدرتي وسیلو ډک دے، د ځنګلونو او ښائستونو وطن دے، د رنګونو وطن دے او د سیندونو وطن دے ــ بیا هم زه بې روزګاره یم، بې وطنه یم او بې وزله یم. زما د وطن په وسیلو زما د واک غوښتنې ته ولې د غدارۍ په نظر کتلے کېږي؟

آیا د ازادۍ او انقلاب لاریونونو مشران ما ته د دې پوښتنو ځواب را کولے شي؟ چې کله ما ته ځواب ترلاسه شي او دغه ځوابونه د ادعاو او نعرو په ځائے په رښتیاو او غېرجانبدارۍ ولاړ وي نو بیا به زه هم اسلام اباد ته لاریون ته ځم.

# اسټېبلشمنټ څهٔ شے دے؟

هر رياست د خپلو سټراټيژيکي، سياسي او اقتصادي ګټو لپاره خپل نظام او خلق لري، خپله نظريه او فکر لري، خپلې لښکرې لري، خپله تپه او چاربېته لري چې پهٔ وار وار ئې د ميډيا پهٔ بېلا بېلو چېنلونو، د نصاب پهٔ کتابونو، د ځينې سياسي، وسله والو او مذهبي ډلو پهٔ قوي کولو او د ځينو پهٔ وهلو اولس ته رسوي. دې ټول نظام ته پهٔ ساده ژبه کښې اسټېبلشمنټ (Establishment) وائي.

پهٔ پاکستان کښې دا اسټېبلشمنټ د پنجاب د سياستدانانو، جرنېلانو، مُلّيانو، صنعت کارانو، خبرياﻻنو او سرکاري او غېرسرکاري ادارو د مشرانو پهٔ لاس کښې دے. هسې خو دوي وائي چې مونږ ټول مسلمانان يو او ټول پاکستانيان يو خو پهٔ عمل کښې هره هاغه پاليسي، نظريه او د پرمختيا هره هاغه منصوبه چې د پنجاب پهٔ ګټه نهٔ وي نو هاغه پاليسي ارومرو د پاکستان پهٔ ګټه هم نهٔ ده. پنجاب او پاکستان د يو هېواد دوه نومونه دي. د اردو او انګليسۍ د نومورې ليکوال محمد حنيف پهٔ خبره پهٔ پاکستان کښې پنجاب يوا ځينۍ بېلتون پاله صوبه يا ايالت دے.

د دې ځلنده مثالونه مونږ د پاکستان پهٔ سياسي او اولسي تاريخ کښې کتلے شو. باچاخان، عبدالصمد خان اڅکزے، اکبر بګټي، ذوالفقار علي بهټو او نور يو شمېر ملت پاله مشران ځکه غداران دي چې د پنجاب د ګټو پهٔ ځائے ئې د خپل اولس او خپل قام د ګټو خبره کوله. پهٔ دوي کښې بيا پهٔ ځينو د کفر فتوې هم لګولې شوې دي.

د درېو صوبو منتخبې اسمبلۍ وائي کالاباغ ډېم زمونږ پهٔ ګټه نهٔ دے او خاوره او

اولس را ته بربادوي خو يکي يو اځې پنجاب وائي چې کالاباغ ډېم سره به د پنجاب زمکې خړوب شي او پاکستان به وده وکړي نو څوک چې کالاباغ ډېم نهٔ مني، هغه د هېواد دښمن دے.

دغه شان د پاکستان او چين ترمينځ د اقتصادي راهدارۍ پهٔ معامله د پاکستان اسټېبلشمنټ هغه سياسي او اولسي مشران غداران ګرځولي دي کوم چې د دغه کوريډور پهٔ اقتصادي ګټو کښې د خپل اولس لپاره برخه غواړي.

د نصاب پهٔ کتابونو کښې زهٔ ميرتقي مير، مرزا غالب، مومن خان مومن او ډاکټر محمداقبال خو وايم او څهٔ اعتراض پرې نهٔ لرم ځکه چې دغه د اردو ژبې لوے ليکوالان او شاعران وو خو کهٔ زهٔ وايم چې زهٔ خوشحال خان خټک، رحمان بابا، غني خان او حمزه شينواري هم وئيل غواړم نو بيا ما ته د تنګ نظره او پرشاتللي پښتون نوم را کولے کېږي او د خېبرپښتونخوا د وزيراعلیٰ پرويز خټک غوندې سياسي مشران چې د پښتنو پهٔ ووټونو د اقتدار څوکۍ ته رسي، پهٔ دې وېنا هم نهٔ شرمېږي چې پښتو واورم نو پهٔ مازغو کښې مې درد کېږي.

د دې اسټېبلشمنټ د کار انداز ډېر عجيبه او خوندرے دے. دا د شطرنج لوبه ده. دا اسټېبلشمنټ زورور پهٔ دې دے چې ټوپک هم لري او فتویٰ هم. د دې دېو او لوئې بلا يو سر نهٔ دے، بلها سرونه ئې دي. کله د فوځي ډکټېټر پهٔ شکل کښې، کله د طالب کماندانانو پهٔ شکل کښې، کله د سياسي مسيحا پهٔ شکل کښې، کله د ديني مدرسو او سکولونو پهٔ شکل کښې، کله د لښکرو پهٔ شکل کښې، کله د کلتوري غونډو پهٔ شکل کښې او کله د ميډيا پهٔ چېنلونو د نوموړو خبريالانو پهٔ وسيله خبره هم د دې اسټېبلشمنټ چلېږي.

قیصه، فکر او منزل یو دے، انداز او اواز ئې بدلېږي.

دا اسټېبلشمنټ سندره هم وائي او مرثیه هم، کور درته هم ورانوي او اوښکې درسره هم تویوي، اتڼې درسره هم کوي او په حجره درته بمبارې هم کوي، جرګه هم درسره کوي او جنګوي دې هم.

سبا که چرې زمونږ په ملتپاله مشرانو کښې څوک د اسټېبلشمنټ نوم واخلي او د وطن د هر مصیبت ذمه واره ئې ګڼي نو بايد په مونږ کښې ترې څوک دا پوښتنه وکړي چې مشره! دا خو سمه ده چې دا بلا ډېره زوروره او مکاره ده خو په دې سیمه کښې د دې اسټېبلشمنټ د هرې تجربې فاتحین هر وخت نور خلق ولې دي او غازیان او شهیدان یواځې مونږه ولې یو؟

زما نصیب کښې جانان نشته
که د تعویذ په ځائے مُلا په غاړه کړمه

## د برلین دېوال ته کورم!

د شلمې پېړۍ په وروستۍ نیمایی کښې د سرمایه دارانه نظام او اشتراکیت ترمینځ بې باوري او د یو بل نه وېره دومره حد ته ورسېدله چې د قامونو ترمینځ ئې د بیلتون دېوالونه ودرېدل. دا دېوالونه تل حکومتونو ودرولي او اولسونو نړولي دي.

په نولس سوه یو شپېتم (۱۹۶۱م) کال کښې د مشرقي جرمني حکومت، جرمن ډیموکراټیک ریپبلیک (German Democratic Republic) د یو دېوال په ودرولو پیل وکړو. دې دېوال ته د برلین دېوال هم وئیلے کېږي چې یو وطن، یوه خاوره ئې په دوو هېوادونو "مشرقي" او "مغربي" جرمني ووېشله. قام یو وُ، تاریخ او کلتور ئې یو وُ، مزل ئې یو وُ خو د هغه وخت سیاستوالانو او جنګ سالارانو ئې د منزل په لاره کښې دغه د شکو او کټو جوړ دېوال ودرولو.

د برلین دېوال خوا ته پاخهٔ پاخهٔ بورجونه جوړ وو چرته چې به د څار لپاره وسله په لاس ځوا کونه ولاړ وو او چې څوک به ئې لیدل چې لهٔ دېواله اخوا اوړي نو ډزې به ئې وربانديې کولې. د مشرقي جرمني حکومت به وئیل چې فاشست (Fascist) هېوادونه د هغو اولس د سوشسلټ انقلاب نه بې لارې کول غواړي. لهٔ دې کبله ئې د خپل اولس د خوندي کولو لپاره دغه دېوال جوړ کړے دے

خو د دېوال تر ودرولو وړاندې خواوشا پېنځه دېرش لکهه خلق د مشرقي جرمني لهٔ بندېزونو نه تښتېدلي وو او د مغربي يورپ پهٔ هېوادونو کښې ئې پناه اخستې وه. حکومت وئيل چې دېوال به د خلقو د تښتېدو مخه ونيسي.

د برلين دېوال تر نولس سوه نهه اتيايم (۱۹۸۹) کاله د جبر او ظلم د يو يادګار پهٔ توګه ولاړ وهٔ خو بيا ئې هم د خلقو لهٔ يو بل سره د يو ځائے کېدو لاره ونهٔ نيوله. پهٔ دې اتهٔ ويشت کاله کښې پېنځه زره جرمنيانو د مرګ تر دې مزي د اغښتلو هڅه وکړه چې پکښې دوه سوه کسان وژلے شوي وو.

پهٔ نولس سوه نهه اتيايم (۱۹۸۹م) کال کښې پهٔ پولېنډ او هنګري کښې د سوشلسټ واکمنو د کمزوري کېدو او پهٔ مشرقي جرمني دننه د ځينو سياسي بدلونونو لهٔ کبله دواړو خواو ته ناقراري ډېره شوه او د اولسونو لهٔ يو بل سره د يو ځائے کېدو غوښتنې زور ونيولو. حکومت مجبوره شو چې مغربي جرمني ته د خلقو پهٔ تګ راتګ بندېزونه اوچت کړي او بيا پهٔ راروانو درې کلونو کښې د دغه دېوال تشه نخښه پاتې شوه.

پهٔ ډلو ډلو خلق به پهٔ دېوال وروختل او لهٔ هغه بل لوري به ورته د مغربي جرمني خلقو تود هرکلے کولو. پنجره ماته شوه، د ازادۍ او يووالي شعارونه پورته شول، تقسيم کړے شوے جدا کړے شوے قام بيا يو شو. د برلين دېوال چې خلق ئې د اوسپنې د دېوال پهٔ نامه هم پېژني، رانسکور شو، راونړېدو. وېرې او بې باورۍ ماتې وخوړه ـــ مينې او قاموالئ وګټله.

جرمن چانسلر "جيرهارډ شروډر"(Gerhard Schroder) يو ځل وئيلي وو،

'دا دېوال نهٔ واشنګټن مات کړے دے او نهٔ ماسکو، دا کار
د مشرقي جرمني ننګيالي اولس کړے دے.'

اوس هم پهٔ نړۍ کښې د ژبې، مذهب، رنګ او نسل لهٔ ډېرو دېوالونو سره سره د

سيمتو، کانو او ازغنو تارونو نه جوړو ديوالونو اولسونه وېشلي دي خو تاريخ دا وائي چې ديوالونه تل رياستونو ودرولي او اولسونو نړولي دي. نن چې په تورخم د يو قام په وګړو د تګ راتګ بندېزونه لګولے کېږي، دروازې ورته تړلې کېږي نو زۀ وايم چې د هاغه زړونو لپاره ديوالونه څوک جوړولے شي چې د يو ې اوږدې او خونړۍ جدائۍ وروستو يو بل ته ورغاړه وتو ته او يو لۀ بله ځارېدو ته لېواله دي.

کۀ د چړو پۀ څوکو لاړ وي

زما پۀ خپل لالي باور دے را به شينه

# زهٔ د جانان سترګو پهٔ کور کښې تالا کړمه

قامي مبارزه پوهه غواړي، يووالے غواړي، د منزل پېژندنه اوتعين او د مزل همت غواړي. پهٔ مهذبه نړۍ کښې د يو اولس د حقونو جنګ سياسي ګوندونه کوي. د قام ستونزې پېژندل، د هغې د هوارۍ لارې پېدا کول او قامي لاربشودنه قامي سياسي ګوندونه کوي. پهٔ دې کښې شک نشته چې لهٔ "پير روښانه" تر "باچاخانه" پورې پښتنو خپله قامي مبارزه مخ پهٔ وړاندې وړې ده او پهٔ دغه لاره کښې لهٔ ډېرو قيامتونو راتېر شوي دي ـــ خو څنګه چې وخت بدلېږي، دغه شان ورسره د قامونو غوښتنې بدلېږي، د ژوند راز او انداز بدلېږي، فکر او فلسفه بدلېږي. څکه چې د هر رنځ خپله خپله درملنه وي، د هر سپرلي خپل رنګ وي، هر درد د خپل اظهار لپاره نوې ژبه غواړي، نوې ساندهٔ غواړي.

نن د هندوکش دواړه اړخ ته دا قام د خپل وجود او تاريخ پهٔ حواله د نوو پوښتنو سره مخ دے او نوي څوابونه غواړي. مونږه ترهګرۍ پهٔ اور کښې وډرولي يو، غربت څپلي يو او ناپوهۍ د وهمونو او تيارو پهٔ جال کښې ګېر کړي يو ـــ خو پهٔ دې ټول عمل کښې زمونږ قامي تحريک کوم ځاے ولاړ دے؟

پهٔ دې سيمه کښې چين غزېدل غواړي، کاروبار کول غواړي او د خپل صنعتي وجود د بقا لپاره زمونږ د خاورې خام مال هم غواړي او نړۍ ته د رسېدو لپاره پهٔ مونږ لاره هم غواړي. دوي ورته د پاکستان او چين اقتصادي کورېډور وائي چې د چين حکومت ورله پهٔ پېل کښې شپږ.څلوېښت بليونه ډالره هم منظور

کړي دي.

چین زمونږ د ترور زوے نهٔ دے. د هر ریاست پهٔ شان خپلې ګټې تاوان ته ګوري. دا پهٔ خپل ځاے سمه خبره ده خو د یو عام پښتون پهٔ ذهن کښې خو دا سوال راوچتېږے شي کنه چې تراوسه زهٔ د ترهګرۍ او بې وسۍ د دې دومره زړهٔ چاودون نه راتېر شوم او نن پهٔ دې سیمه کښې د پرمختیا منصوبې جوړېږي نو زما برخه پکښې شته او کهٔ نهٔ؟

جغرافیه وائي چې ستا برخه پکښې شته ځکه چې کهٔ دا لاره پهٔ ډېره اسماعیل خان، وزیرستان او ژوب تېره شي او ګوادر ته ورسي نو لنډه هم ده او خرڅ پرې هم لږ راځي ـــ خو د لاهور د تخت باچا وائي چې دا لاره او د دې سره تړلې ټول سهولتونه به ورومبي لهٔ پنجابه تېرېږي. کهٔ وروستو پکښې ستا څهٔ رسي او کهٔ نهٔ ـــ ستا خپل قسمت!

دا زمونږ د ملتپاله سیاسي مشرانو کار وهٔ چې پهٔ دې منصوبه کښې ئې د خپل اولس حقونه غوښتلي وے او یو ښکاره دریځ ئې خپل کړے وے، خو پهٔ دې اړه تر ټولو منظم او سائنټیفیک کار پښتونخوا اولسي تحریک وکړو.

د دسمبر پهٔ ډېرشمه نېټه د پاکستان وزیراعظم پهٔ ژوب کښې د یو سړک پرانسته وکړه او دغې لهٔ ئې د اقتصادي راهدارۍ د مغربي روټ نوم ورکړو. پهٔ دغه موقعه د پښتونخوا ملي عوامي ګوند مشر محمودخان اڅکزے، د جمیعت علماء اسلام مشر مولانا فضل الرحمان او د عوامي نېشنل ګوند سټر سکټر میا افتخار حسېن هم موجود وو. تقریرونه وشو، لاسونه وپړقېدل او خبره ختمه شوه.

خو د پښتونخوا اولسي تحریک مشران وائي چې دا د کوربهٔور مغربي برخه نهٔ وه بلکې یو ساده سړک دے او هغه پروژې ور پهٔ کښې شاملې نهٔ دي کومې چې د

پنجاب لپاره منظورې شوې دي.
راوي وائي چې په دغه موقع مولانا فضل الرحمان او میا افتخارحسېن وزیراعظم ته په دغه سرک خپل تحفظات ښودلي وو خو قدرمن محمود خان اڅکزي هېڅ هم نهٔ وو وئيلي. دغه شان څهٔ موده وړاندې چې د عوامي نېشنل ګوند مشر اسفندیار ولي خان د وزیراعظم سره په اسلام اباد کښې ولیدل نو په مونږ ئې دا زېرے وکړو چې فکر مهٔ کوئ، تاسو چې څنګه غواړئ دا کار به هم هاغه شان سر ته رسي. خو اوس چې مونږ ګورو نو قیصه داسې روانه ده څنګه چې ئې مرکزي حکومت وړاندې بوتلل غواړي. د فلم مرکزي کردارونه نور دي. کېدے شي مونږ ورپکښې د اېکسټرا کردارونو په توګه د پلاټ د ډکولو لپاره ځاے کړے شوي یو.
دا هم معلومه نهٔ ده چې د نوازشریف سره کومه داسې ګېډرسینګۍ ده چې هاغه مشران ئې هم غلي کړي دي چې اوازونه ئې تر چترال او تر بولانه رسېدل.
په دې ټول عمل کښې تر ټولو خوندوره خبره دا ده چې د تحریک انصاف غوندې سیاسي ګوند چې تل ئې د پاکستان د فوځي استېبلشمنټ بیانیه په مخ بوتلې ده، تر ټولو زورور دریځ خپل کړے دے او د صوبې وزیراعلیٰ پروېز خټک په پېښور کښې د سیاسي ګوندونو غونډې ته وئیلي دي چې مرکزي حکومت د صوبې غوښتنې نهٔ مني نو د تهاکوټ نه تر حویلیان پورې د یو سل شل کلومیټره خاورې د کارولو اجازه به ورله ورنهٔ کړي.
دا به اوس کتلے شي چې دا تشه نعره ده او کهٔ نه د تحریک انصاف، حکومت به پرې عمل هم وکړي خو تر ټولو لویه ذمه واري د هاغه سیاسي ګوندونو ده چې په دې خاوره دعویٰ هم لري اود اولس مشري هم ورسره ده. یو وخت وهٔ چې په دې خاوره به دا اوازونه پورته کېدل، "لر او بر یو افغان"، "یو قدم یو اواز"،

"انقلاب انقلاب"، "خپله خاوره خپل اختيار"، "نهٔ منو د بل اختيار"، "اے ولي! تهٔ يو اشاره وکړه، بيا ئې تماشه وکړه"، "لهٔ بولانه تر چتراله پښتون يو کړه محمود خانه!"، خو څو شېبې لا تېرې نهٔ وې چې دغه ټول شعارونه، دغه ټول اوازونه ورک شو، تشې انګازې ئې پاتې شوې او لږ ساعت وروستو هېڅ هم پاتې نهٔ شو ـــ اوازونه هم نهٔ، او انګازې هم نهٔ.

خلق صحرا کښې تالا کېږي

زهٔ د جانان سترګو پهٔ کور کښې تالا کړمه

۳ جنوري ۲۰۱۶م . تانډ

# پښتونخوا کنسنټرېشن کېمپ

ما وئيل زهٔ به د شېر کلن شاه زيب اپريدي قيصه ليکم ـــ
هو! هاغه شاه زيب چې څو ورځې وړاندې د جمرود په بازار کښې سره د خپل مور پلار ووژلے شو ـــ
هو! هاغه شاه زيب، د چا په سترګو کښې چې د ژوند خوبونه لاهٔ مرګه پس هم غړېدل ـــ
هو! هاغه شاه زيب چې د رياستونو ترمينځ د ستراتيژيکي ګټو لپاره په جوړه شوې قتل ګاه کښې قتل شو، تېر شو او هېر شو.
خو کومه کومه قيصه به کوو؟ لهٔ تيکره راواخله تر باجوړ، لهٔ پېښوره تر کابله، لهٔ چتراله تر کوټې او کندهاره، لهٔ سواته تر وزيرستانه. د پېښور لهٔ سکوله تر باچاخان پوهنتونه ـــ دا ټوله سيمه يو لوے کنسنټرېشن کېمپ دے. دلته هره شپه قيامت او هره ساه يو لوے ناورين دے.

وخته دلته چې قدم ږدې نو په خيال ږده
د دې خاورې کاڼي بوټي شهيدان دي

زهٔ په پاکستان کښې په دې اتهٔ شپېتهٔ کاله نهٔ چا ښهٔ مسلمان ومنلم او نهٔ يو ښهٔ پاکستانے ـــ زهٔ څوک يم؟
ما د اسلام په نوم اوچت شوي هر بېرغ ته سلام کړے دے او تش سلام مې نهٔ دے کړے، قرباني مې هم ورکړې ده. خونن چې په جرګو، حجرو، تعليمي ادارو، ښارونو، کلو، جوماتونو او د لويو په مېدانونو کښې زهٔ هم د اسلام په نوم وژلے کېږم نو زهٔ د دې خپل اسلام پوښتنه د چا نه وکړم؟

د چا اسلام ومنم؟

زهٔ د پاکستان لپاره د خپل ورور پهٔ مرګ غلي شوے يم. ما د خپل حق لپاره خبره هم نهٔ ده کړې خو د پاکستان لپاره ما هر وخت د وينو نذرانې ورکړې دي. زما خپل کور لوټ شوے دے خو بيا مې هم د پاکستاني رياست د ېادارانو د کورونو حفاظت کړے دے.

خو هم د دغه پاکستان پهٔ قامي ميډيا او رياستي بيانيه کښې زهٔ يو بې وقوف او غدار پټهان يم.

زهٔ کوم هېواد ته خپل هېواد ووايم؟

کومې خاورې ته خپله خاوره ووايم؟

زهٔ خو پهٔ دې وطن کښې پهٔ ژوندوني مړ يم!

پهٔ باچاخان پوهنتون بريد يواځې پهٔ يوه تعليمي اداره بريد نهٔ دے، د پښتنو پهٔ تاريخي سياسي مبارزه بريد دے، د هغوي پهٔ روښانه سباوون بريد دے، د هغوي پهٔ فکر او فلسفه بريد دے او د هغوي پهٔ عزت بريد دے.

د رياست اولين ذمه واري خو د خپلو وګړو د ځان، مال او عزت حفاظت وي او کله چې رياست د دغه لوړو انساني قدرونو پهٔ خونديتوب کولو کښې يو ځل نهٔ زر ځله پاتې راشي نو بايد د رياست غړي دې پهٔ خپل ځان ووېرېږي.

خو آيا پهٔ تشه وېره به کار وشي؟

خېبر پښتونخوا حکومت پښتو ته شا کړې ده!

پهٔ نصاب کښې پښتو د يو لازمي مضمون پهٔ توګه د خېبر پښتونخوا حکومت پهٔ لومړيتوبونو کښې نهٔ دے او د صوبې پهٔ ډېرو پوهنتونو کښې د پښتو څانګه نشته.

پهٔ خېبر پښتونخوا کښې د سکولونو او کالجونو استاذان او د پښتو ژبې

لیکوالان وائي چې د تحریک انصاف او جماعت اسلامي په مشرۍ کښې د صوبې موجوده حکومت د پښتو ژبې د درس او تدریس په اړه څهٔ واضحه پالیسي نهٔ لري او پهٔ تعلیمي ادارو کښې ئې د پښتو زده کړه لهٔ پامه غورځولې ده.

پهٔ ملاکنډ کښې د یو کالج استاذ اقبال شاکر وائي، پهٔ نصاب کښې پښتو د یو لازمي مضمون پهٔ حېث د حکومت پهٔ لومړیتوبونو کښې نهٔ دے او د صوبې پهٔ ډېرو پوهنتونو کښې د پښتو څانګه نشته.

پهٔ مردان کښې ولي خان یو ډېر معیاري پوهنتون دے. هلته د پښتو څانګه نشته. پهٔ سوات پوهنتون کښې د پښتو څانګه نشته او دغه شان پهٔ شهید بینظیر بهټو پهٔ نوم پوهنتون کښې هم د پښتو څانګه نشته. پهٔ کالجونو کښې چې کومې سیټې د پښتنو دي، هلته پهٔ کالجونو کښې پهٔ تېر وخت کښې د استاذانو یوه یوه چوکۍ وه خو نهٔ د عوامي نېشنل ګوند تېر حکومت او نهٔ موجوده حکومت د کالجونو لپاره دغه چوکۍ منظورې کړې دي.

پهٔ خیبر پښتونخوا اسمبلۍ کښې د عوامي نېشنل ګوند پارلېماني مشر او د تعلیم پخوانے وزیر سردار حسین بابک وائي، د هغوي حکومت چې پهٔ صوبه کښې د پښتو او نورو سیمئیزو ژبو د ودې لپاره کار پېل کړے وهٔ، موجوده حکومت پهٔ مخ نهٔ دے وړے. مونږ د مورنیو ژبو لپاره د ریجنل لېنګویجیز اتهارټي (Regional Language Authority) پهٔ نوم یوه اداره جوړه کړې وه او پښتو مو پهٔ تعلیمي ادارو کښې یو لازمي مضمون ګرځولے وهٔ. چې کله د تحریک انصاف حکومت راغے نو لهٔ بده مرغه هاغه پالیسي ئې لهٔ مینځه یوړه او د پښتو پهٔ ځائے ئې د انګلیسۍ د زده کړو ورکولو پرېکړه وکړه. اوس دوي اخته دي کله لهٔ یوه ټولګي او کله لهٔ بل ټولګي د پښتو مضمون لرې کوي. مونږ به د اسمبلۍ دننه او بهر د دې پالیسۍ یوازې مخالفت نهٔ کوو بلکې مزاحمت به ئې

کوو، ځکه چې مورنۍ ژبه له مينځه وړل د تاريخ تر ټولو لويه غداري ده.
د تحريک انصاف له خوا د صوبې د اسمبلۍ غړي او د اطلاعاتو پخوانۍ وزير شوکت يوسفزي وائي، پوهنتونونه له مالي ستونزو سره مخامخ دي نو له دې کبله هاغه مضمونونو ته ډېر پام کېږي چې د زده کوونکو او پوهنتونونو دواړو لپاره ګټه لري. دا مهال په لوړو زده کړو کښې ډېرې ستونزې دي او پوهنتونونه مالي بحران لري. نو له دې کبله چې هغوي (حکومت) يو نوے کېمپس پرانيزي نو دا هڅه کوي چې هغه مضمون پکښې شامل کړي چې خلق ئې وئيل غواړي او پوهنتون پرې هم روان وي. په ښکته کچه په سکولونو کښې پښتو د مضمون په توګه اوس هم ښودلې کېږي.
د ملګرو ملتونو د چارټر تر مخه په مورنۍ ژبه زده کړې د هر زده کوونکي بنيادي حق دے. خو تر اوسه په خيبر پښتونخوا اوقبائيلي سيمو کښې د مورنيو ژبو د زده کړو او د دې لپاره ځۀ اوږد مهاله پاليسي مخې ته نۀ ده راغلې.

# د پښتنې ژوند او مرګ؟

د نولسمې پېړۍ جرمن شاعر هينريخ هين (Heinrich Heine) وائي،
"په کوم ځاے کښې چې څوک کتاب سوزولو ته پرېښودے شي، يو وخت به داسې راشي چې بيا به دغه خلق د انسانانو لهٔ سوزولو هم ډډه ونهٔ کړي."
د دې کتابونو پهٔ ضد کمپائن د نازي جرمنيانو د زده کوونکو اتحادي غړو پېل کړے وهٔ چې دغه شان لهٔ خپلو پوهنتونونو او کتابتونونو هاغه کتابونه لرې کړي چې پهٔ اصل کښې جرمن نهٔ بللے کېدل. دوي د جرمنې پهٔ نولس ښارونو وګرځېدل او تر پنځويشت زرو ډېر کتابونه ئې داور لمبو ته وسپارل.
پهٔ دیارلسمه پېړۍ کښې د چنګېز خان ځواکونو او بيا پهٔ هغهٔ پسې نورو منګولو جرنيلانو پهٔ بغداد کښې کتابتونونو ته اور ورته کړو او د کتابونو پهٔ شکل کښې د عباسي خلافت د علم او پوهې خزانې ئې وسوزولې او سائنسدانان او پوهان ئې ورته ووژل. تاريخ ليکونکي وائي چې د دجله درياب ته دومره ډېر کتابونه غورځولے شوي وو چې اوبهٔ ئې د کتابونو سياهۍ تورې کړې وې.
د کتابونو د سوزولو پهٔ شا کلتوري، مذهبي يا علمي لاملونه وي. خو نتيجه ئې راروانو نسلونو ته د ناپوهۍ، بې وزلۍ او بربادۍ پهٔ شکل کښې مخې ته راځي. دا يواځې سياهي او کاغذ اېرې کول نهٔ دي بلکې د يو فکر سپکاوے دے. پهٔ بغداد کښې د کتابتونونو د سوزولو اثر تر پېړوپېړو پاتې شو. تر کلونو کلونو بغداد يو

غېرا باد ښار وهٔ او د رنګ او رڼا کاروانونه پکښې پهٔ تېره ودرېدلي وو.

پهٔ افغانستان کښې څهٔ باندې تېرو درې لسیزو جنګ جګړو یواځې زمونږ کورونه وران نهٔ کړل، یواځې خلق ئې ونهٔ وژل بلکې زمونږ علمي، تاریخي او کلتوري اثاثې پکښې هم وسوزېدې. نتېجه ئې دا شوه چې د مینې او انساني ښېګړې کلتور د جنګ او تشدد پهٔ کلتور بدل شو. مونږ اوس خپلې څهرې هم نهٔ پېژنو.

پهٔ۲۰۰۳م کال کښې د سوات درې پهٔ مینګوره ښار کښې یو ډېر تکړه ډاکټر عبدالوهاب پهٔ خپل کلینک کښې ډېر پهٔ بېدردۍ سره ووژلے شو. ګناه ئې دا وه چې د پښتنو پهٔ سیمه کښې ئې پهٔ ځینو جنسي ناروغیو کتاب لیکلے وهٔ او دا ځینې خلقو ته منظوره نهٔ وه چې پهٔ دغه رنځونو خبره وشي او د درملنې لارې چارې ئې راوویستې شي. اوس هم دغه وطن دے چې د هنرمندې شبانې مړے پکښې د سوات پهٔ ګرین چوک کښې وغورځولے شو او خوږ ژبې سندرغاړه غزاله جاوید د پېښور پهٔ کوڅو کښې د رسم او رواج پهٔ دار وخېژولې شوه.

بیا دا هم نهٔ ده چې د علم او کتاب پهٔ ضد کمپائن به پهٔ دغه ځائے ودرېږي. دا رو رو فکرونه نور تاریک کړي، د تپوس کولو او د تجسس جذبې مړې کړي، د ښائست رنګونه د بارودو پهٔ لوګو تور کړي او بیا سندره هم ساه ور کړي.

نن څوک دا تپوس نهٔ شي کولے چې د محسودو نومړے سندرغاړے کمال محسود پهٔ اسلام اباد کښې چا ووژلو او کهٔ نه رښتیا پهٔ خپل کور کښې د اور لګېدو لهٔ کبله مړ شو؟ هېڅوک دا نهٔ وائي چې د اسلامیه کالج پوهنتون وائس چانسلر اجمل خان ولې وتښتولے شو؟ هېڅوک دا نهٔ وائي چې دا پهٔ قبائیلي سیمو او خېبر پښتونخوا کښې پهٔ زرګونو سکولونه وسېزلے شول نو زمونږ د نوي کهول سبا به څنګه وي؟

ناشناس څهٔ شو؟ شاه ولي چرته دے؟ قمر کله څهٔ شوه؟ اوس هم د افغانستان او پښتونخوا د ليکوالانو، استاذانو، سندرغاړو او هنرمندانو د وژنې لړې دوام لري او نور کښ هنرمندان او اولس پالي خبرياالان پهٔ خپل وطن پرېښودو مجبوره شول. دا يوازې د ظلم او تشدد پيښې نهٔ دي. دا د دې قام د تاريخ، فکر او ژوند د فلسفې مرګ دے.



# د غني عبادت ـــ مینه!

لهٔ پېړيو راهسې کله یو جنګ او کله بل جنګ ـــ مودې وشوې چې د هندوکش د غرونو پهٔ سرونو کله اورونه بلېږي او کله دردونه ـــ خو د فطرت د مهربانۍ لاره څوک نیولے شي؟ د ژوند لاره څوک تړلے شي؟ د دغه غرونو پهٔ لمن کښې تل ګلونه ټوکېدلي دي. دلته پهٔ هر کاڼي، هره لاره او پهٔ هر ګودر کښې د احساس او رنګ سپرلے تل تاند او تپاند پاتې شوے دے.

دلته د سیندونو پهٔ غاړه د رنګ او نور قیصې شوې دي ـــ دلته پهٔ حجرو کښې ارمانونه او سازونه غاړه پهٔ غاړه شوي دي ـــ دلته بدهٔ د ژوند راز موندلے دے ـــ دلته پیر روښان، خوشحال خان، حمید ماشوخېل او رحمان بابا د ژوند د لازواله ښائستونو سندرې لیکلې او وئیلې دي ـــ دلته باچاخان د عدم تشدد او امن پهٔ نوم د نړۍ تر ټولو لوے سیاسي او اصلاحي غورځنګ را اوچت کړے دے. هم د دې خاورې نه د مېوند د ملالۍ د ننګ چغه او د سوات د ملالې د رڼا پېغام د نړۍ ګوټ ګوټ ته رسېدلے دے.

دلته خو د غرهٔ د شپونکي شپېلۍ هم د ژوند د ښائستونو خبره کړې ده. دلته خو د هرې تېږې پهٔ سینه کښې د تاریخ او سماج د جبر داستانونه پټ دي. دلته خو پهٔ ماتو شوو منګو کښې هم خلق د ګلونو کر کوي.

دلته د تاریخي پښکلاوتي پهٔ غېږه کښې یو لېوني فلسفي د تاریخ پهٔ ورکو شوو کتابونو او د تلو ټولو کاروانونو پهٔ مزلونو کښې د خپل قام د ورک شوي منزل

درک موندلے دے. دلته غني خان د انساني ژوند په اړه هغه پوښتنې راوچتې کړې دي، کومې چې د خپلې ریښتینولۍ او "اوریجینیلیټي"(Originality) په حواله د نړۍ د سترو پوهانو او منورینو د فکر سره پر تله کېدے شي.

غني خان د خدائے، انسان او کائنات په مشاهده او مطالعه کښې د نُور او رڼا په هاغه جهانونو گرځېدلے دے، چرته چې رب جانان دے او د جانان سره د عقیدت او مینې د اظهار لپاره د کوم رهبار یا استاذي حاجت نشته. غني خان مونږ ته هاغه مخونه ښکاره کوي کوم چې دعویٰ د خدائے د مینې کوي او کارونه ئې لهٔ ظلم او وحشته ډک دي.

د مُلا عبادت کسب، پاڅېدل او کېښناستل
د حلوا پهٔ ارمانونو، تل الله الله کول
د مُلا مینه عجبه، پهٔ پیټۍ مئېنېدل
او د حورو لمغړو ته، د خرڅوکو هنېدل
د صوفي عبادت ویر دے، سوزېدل او ژړېدل
د رحمان رحیم د نوم نه، رپېدل او وېرېدل
د صوفي مینه عجبه، د زړهٔ گل مړاوے کول
بېکنار دریاب د حسن، پهٔ کوزه کښې بندول
د زاهد عبادت چړ دے، سوال منت زاري کول
پهٔ جنت او دې دنیا کښې، د فائدې سودا کول
د زاهد مینه عجبه، پهٔ خپل ځان مئېنېدل
دریاسپي جوته کړي، دلربا له ور کول
د غني عبادت مینه، ځان جانان کښې ورکول
د مئېنو سترگو شرنگ ته، گډېدل او خندېدل

د غني مينه عجبه، تول بېلات، هېڅ نهٔ ګتل
دا خپل ځان او جهان دواړه، يو خمار کښې ور کول

هاغه مُلا جان چې پهٔ دې خاوره د وهم، تيارو او وېرې تخم کري، د دې خاورې ازلي دښمن وهٔ خو چا پېژندو ځکه نهٔ چې هغهٔ لهٔ ځانه د تقدس يوه داسې نوراني دائره راښکلې وه چې د هغې نه بهر پښه اړول پهٔ سُور دوزخ کښې قدم ايښودل وو. هاغه مُلا جان لکه د خپل زړهٔ د تيارو د دې اولس پهٔ ذهنونو او زړونو کښې د تيارو کورونه جوړ کړي وو .هاغه مُلا جان وظيفه خو د دې غريب اولس خوړه خو ولې ملګرتيا ئې د سامراج او يرغلګرو سره وه.
غني خان د خپل ځان او خالق تر مينځ د دغه مُلا وجود او وسيله نهٔ منله، ځکه چې د غني خان پهٔ نزد مُلا د انساني پرمختګ، خوشحالۍ او بشردوستۍ پهٔ لاره کښې يو لوے دېوال دے. دغه مُلا د وهم او وېرې علامت وهٔ او د انسان د نجات او خوشحالۍ لاره د وهم او وېرې نهٔ، بلکې د اميد، مينې او يقين لاره ده.

لېونيه! ايمان څهٔ دے؟ مُلا! دا دے پوخ ګمان
د يو خوب پهٔ زړهٔ ليدهٔ دي، د وصلونو د جانان
لېونيه! حوره څهٔ ده؟ مُلا! سپينه لولکۍ ده
يوه کرښه د شفق ده، د خندا بربوړکۍ ده
لېونيه! چې نمونځ څهٔ دے؟ مُلا! خاورې ښکلول دي
د جانان کوڅې ته تلل دي، د اميد ارمان کېدل دي
لېونيه! سجده څهٔ ده؟ مُلا! ځان خاورې کول دي
د مستۍ د ګلو هار، د يار پښو کښې اچول دي

غني خان پهٔ وړومبي ځل د نړۍ د پرمختللو تهذيبونو او تولنو فکر پهٔ خپله لمن کښې لکه د ګلونو راټول کړو او د پښتنو راروانو نسلونو ته ئې پهٔ لاره کښې

وشيندل. هغهٔ غوښتل چې دا قام هم د خپلې ماضۍ د مزار منجورتيا پرېږدي او د رڼا د هاغه منزل پهٔ لور ګامونه واخلي چرته چې ټولنه پهٔ مينه او پوهه ولاړه وي، چرته چې د انسان قدر د هغهٔ پهٔ زيار او کار وي او باچائي د بشريت وي.

د مارچ شپاړسمه ۲۰۱۶م. ټانک



# چې چرته ځې نو ما ته وايه!

نن سبا په خېبر پښتونخوا کښې حکومت د سکولونو له نظامه پښتو ژبه وباسي او تګلاره به دا وي چې ماشومان به په انګريزی ژبه کښې زده کړې کوي. د حکومت وزيران صاحبان وائي چې هر څه په انګليسي ژبه دي نو پښتو زده کولو ته اړتيا نشته.

په اروپا کښې په دې شپږ کاله کښې د خپلې ژبې د اهميت په حواله، د کتاب په حواله، د علم په حواله او د سائنس په مېدان کښې د ځېرنو په حواله زه په يوه خبره رسېدلے يم او هغه دا ده چې مورنۍ ژبه د پرمختيا په لاره کښې خنډ نه دے ـــــ په مورنيو ژبو کښې له زده کړو پورته پرمخ تلل هېڅ امکان نه لري.

چيک جمهوريت د مينځنۍ اروپا يو وړوکے هېواد دے. څه باندې لس مليونه خلق پکښې ژوند کوي خو د دې جمهوريت په تعليمي ادارو، ځېړنيزو مرکزونو او سائنسي ليبارټريو کښې ټول کتابونه د دې قام په مورنۍ ژبه کښې دي. زه ګورم چې دا لس مليونه خلق تر پنځوس مليونه پښتنو ډېر ښه ژوند تيروي او د خپل تاريخ، کلتور او سباوون په اړه د کومې سرګردانۍ يا کنفيوژن ښکار نه دي.

هره ورځ د نړۍ د سترو ليکوالانو، سائنس پوهانو، عالمانو او څېړونکو کتابونه، مقالې او څېړنې له نورو ژبو چيک ژبې ته ژباړے کېږي او خپرېږي. د نورو اروپائي قامونو په شان دا خلق په کور او بهر دواړو کښې کتاب ګوري. کله کله په بحثونو کښې راته دا اندازه هم وشي چې زمونږ په اقتصادي، سياسي او امنيتي ستونزو دوي تر مونږ هم ډېر ښه پوهېږي.

مونږ چې بچي سکولونو ته لېږو نو د هغوي استاذان راته وخت په وخت دا ټينګار کوي چې په کور کښې له ماشومانو سره په خپله مورنۍ ژبه خبرې وکړو ځکه چې د ماشوم په نفسياتي او جذباتي وده او د هغهٔ د صلاحيتونو په ښائسته کولو کښې مورنۍ ژبه يو مهم ځائے لري. بې ژبې خلق خو نيمګړي وي. دا نهٔ چې زموږ بچي نورې ژبې نهٔ زده کوي يا علوم نهٔ زده کوي. دلته چې هر ماشوم زده کړې پوره کوي نو د انګليسۍ سره سره په فرانسوي، جرمن او سپېنش ژبو هم خبرې کولې شي.

مورنۍ ژبه يواځې د اظهار وسيله نهٔ ده بلکې دا د يو قام د تاريخ، کلتور، او د هغوي د ټولنيز مزل په اړه د معلوماتو، يادونو او ارمانونو سرچينه وي.

نن سبا په خيبر پښتونخوا کښې حکومت د سکولونو له نظامه پښتو ژبه وباسي او تکلاره دا ده چې ماشومان به په انګريزۍ کښې زده کړې کوي. د حکومت وزيران صاحبان وائي، هر څهٔ په انګليسۍ ژبه دي نو پښتو زده کولو ته اړتيا نشته.

د پښتنو په سيمه کښې پښتو ژبه تل د خپلو او پردو دواړو د لاسه ځپلې شوې ده او د دوزخ ژبه ګرځولې شوې ده. نهٔ د پښتنو په ټولنيز ژوند کښې د عزت ځائے لري او نهٔ د رياست په پاليسيو کښې. پښتو ژبه خو يا شاعرانو ژوندۍ ساتلې ده او يا سندرغاړو.

نهٔ يم خبر چې يواځې د انګريزۍ ژبې سره به زمونږ دا نوے نسل د پرمختيا په لور لاړ شي کهٔ نهٔ؟ — خو کهٔ ژبه ترې ورکه شوه نو يوه خبره څرګنده ده چې خپل ځان به ترې ارو مرو ورک پېږي.

تاريخ دا وائي چې له ژبې پورته د قامي وجود پاتې کېدل ممکن نهٔ دي.

چې چرته څې نو ماته وايه

چې په پردو کوڅو کښې نهٔ کړم تپوسونه

# پاکستان امریکه "بهائي بهائي"

په تاریخي لحاظ سره پاکستان د نړۍ یو له هغو هېوادونو څخه دے چې له امریکې څخه ئې تر ټولو ډېرې مالي مرستې اخستې دي.

د بریطانیا "ګارډین"(Guardian) ورځپاڼې په یو راپور کښې وئیلي چې د ۱۹۴۸م کال راهسې امریکا پاکستان ته له ډېرشو بلیونو ډالرو څخه ډېر مالي امداد ورکړے دے. د دې ډېرشو بلیونو ډالرو نیمه برخه د فوځ جېب ته تلې ده.

په ۲۰۰۱م کال کښې د ترهګرۍ په ضد له جګړې سره د فوځ غوا یو ځل بیا لنګه شوه او د هغو خلقو د نوعې ویستو لپاره یا د هغه فصل رېبلو لپاره چې دوي د نولس سوه اتیایمې لسیزه کښې کرلے وۀ، پاکستان ته ۲۱ بلیونه ډالره ورکړے شول. په ۲۰۱۰م او ۲۰۱۱م کښې د اوباما د انتظامیې د لاندې پاکستان د ۴.۵ بلیونو ډالرو نور امداد هم ترلاسه کړو.

که افغان جهاد وۀ او که د ترهګرۍ په ضد جګړه ــ ځاني، مالي، کلتوري او ټولنیز زیان پکښې هاغه اولس ته رسېدلے دے چې د هندوکش په لمنه ژوند کوي او پښتانهٔ دي.

پوښتنه دا ده چې آیا دا مالي مرستې، وسلې او د پرمختیا پروژې د دې لپاره وې چې په هېواد کښې د امنیت وضع ښه شي؟ د سخت دریزو وسله والو او ترهګرو مخه ونیولې شي او د خلقو د ژوند معیار ښهٔ شي؟ او کهٔ نه دا د دې لپاره وې چې د پښتنو د پرمختیا مخه ونیولې شي او هغوي بې کوره او بې اوره کړے شي؟

کهٔ دا د طالبانو او القاعده پهٔ ضد وې نو د وسله والو طالبانو نېټ ورک او د هغوي د ترهګرو بریدونو لړۍ اوس هم دوام لري. څو کاله وړاندې به پهٔ بېې چاودنو کښې پهٔ سلګونو کسان ووژلے شول او اوس پهٔ هدفي وژنو کښې هاغه خلق وژلے کېږي چې د امن او پرمختیا لپاره کار کوي او د القاعده مشر پهٔ ایبټ اباد کښې د فوځ د چاونۍ مخې ته وموندلے شو. کهٔ دا جنګ د سخت دریزه مذهبي لېونیانو پهٔ ضد دے نو ولې بیا ورځ تر ورځه د جهادي مدرسو او وسله والو ډلو شمېره ډېرېږي او د قبائیلي سیمو د ملیونو خلقو لپاره یو پوهنتون قدرې هم نشته؟

پوځي او حکومتي چارواکي چې هر څهٔ وائي خو رښتیا خو هم دا دي کنه چې لهٔ وزیرستانه تر سواته پهٔ ملیونو خلق د خپلو کورونو څخه بې کوره شول، کورونه ئې وران شول، فصلونه ئې وسوزېدل او څاروي ئې مړهٔ شول.

دا یواځې د انسانانو مائیګرېشن نهٔ وهٔ، دې بحران د پښتنو تولنه ټوټې ټوټې کړه، د هغوي تاریخي اثار او دود دستور ئې اغېزمن کړل او چې کله ئې د مرستو لپاره پهٔ قطارونو کښې ودرول نو د هغوي غرور ئې هم مات کړو.

کله چې پهٔ سوات کښې بې ګناه خلق وژلے کېدل نو فوځي چارواکو به وئیل چې پښتانهٔ د پاکستان لپاره قرباني ورکوي. ډېره ښهٔ ده چې دومره خو منې خو زما د قربانۍ پهٔ بدل کښې ستا ریاست ما له د بې روزګارۍ، غربت او جهالت نهٔ بغېر څهٔ را کړل؟ چې پښتنو د پاکستان د پاره قرباني ورکړه نو بیا ولې د پښتنو

زوړ او ځوان، ښځه او نر، لوی او وړوکی په فوځي شوکیو د روزمره په بنیاد د فوځیانو له لاسه ذلیله کیږي؟

أیا د کرښې دواړه اړخ ته د پښتنو ملتپاله مشران، مُنورین، پوهان، استاذان، سیاسي غړي، خبریالان، لیکوالان، مُلایان، ځوانان، ښځې او سړي د دې پوښتنو د ځواب پیدا کولو لپاره اوس هم د یوې قامي مکالمې یا National Dialogue ضرورت نهٔ احساسوي؟

چې دې کول هغه دې وکړل
اوس مې پلو په مخ راخور کړه خوب راځینه

# ښه ده چې شونډې مې او رناخلي!

اظهار حق دے. خبرې کول حق دي ــ بنيادي انساني حق. ټوله نړۍ ئې مني، ټول مهذب انسانان ئې مني. دفاع ئې کوي. د دې حق ګټلو لپاره بې شمېره خلقو د خپلو وينو قرباني ورکړې دي او دا ځکه چې خبرې په خبرو هوارېږي. خو په پاکستان کښې هاغه خلق دا حق نهٔ لري کوم چې په بلوچستان او په پښتونخوا کښې د بې ګناه خلقو په وژنه، تښتولو او زورولو خبره کول غواړي ـــ پوښتنه کول غواړي ـــ اواز اوچتول غواړي.

هاغه رياستي او غېر رياستي ادارې چې په ښکاره د يو بل دښمنانې دي، د بشري حقونو د دفاع کوونکو، ملتپاله سياسي مشرانو او د امن جرګو د غړو په وژنه کښې شريکې دي ـــ يوه خولهٔ دي، يو مشن لري، يوه نظريه او يو فکر لري.

ځکه لهٔ وزيرستانه تر سواته او لهٔ خيبره تر بولانه او تر کابله خاموشي ده ـــ وېروونکې خاموشي ـــ داسې خاموشي چې په خپل ځان کښې ئې د زرګونو بې ګناه خلقو چغې سُورې را نغښتلې دي. زړونه مات دي، ذهنونه شل دي. خو څوک اَه هم نهٔ شي کولے. تهٔ به وا ئې چې دا ټوله سيمه يو کنسنټرېشن کېمپ (Concentration Camp) دے، زندان دے چرته چې ټول د خپلې سزا په انتظار دي.

په پېښور، کوټه، کابل او سوات کښې د ذهني مريضانو شمېره لا په ډېرېدو ده. د روحي رنځونو په ډاکټرانو وار نهٔ شي موندل کېدے. هيلې نشته، ارمان نشته، سندره نشته، ساز نشته، خوب نشته ـــ وېره ده، بې يقيني ده او وېروونکې خاموشي ده ـــ داسې خاموشي چې هر غږ ئې محاصره کړے دے!

زما ځينې ملګرې وائي دا خاموشي په خپل ذات دننه يو لوی طوفان لري. يوه لويه زلزله چې د ظلم ماڼۍ به رانسکورې کړي ـــ کېدے شي دا خبره تر څه حده سمه وي خو دا اوس چې د مليونو انسانانو په زړهٔ څهٔ تېرېږي، دا اوس چې د خلقو شونډې کنډاې دي او څوک تور ته تور او سپين ته سپين نهٔ شي وئيلے، د دې بدبختو به څهٔ کېږي؟ د دوي د ارمانونو او خوبونود خاورې کېدو تاوان به څوک پوره کوي؟ د دې قتلونو کفاره به وشي؟

خو خبرې کول هم هنر غواړي، لاره غواړي، ځاے غواړي او حوصله غواړي. اوس د اولس خوښه ده چې په نوي دور کښې د خبرو نوے چل زده کوي او ځان د تورو تيارو نه راوباسي او کهٔ نهٔ د مرګ لهٔ وېرې خاموشه پاتې کېږي او د ځان سره سره خپل راتلونکي نسلونه هم مرګ او بربادۍ ته سپاري.

ښه ده چې شونډې مې اور ناخلي
د زړهٔ لهٔ سره مې لمبې خولې له راځينه

۲ اپريل ۲۰۱۵، تاند

# دا خلق داسې نهٔ وو!

دا خلق داسې ورک نهٔ وو، لکه دا اوس چې پې درکه دي—
داسې يوائې نهٔ وو، لکه دا اوس چې پې څوکه دي—
دومره بې وسه نهٔ وو، دا لکه اوس چې پې اسرې دي—
دومره بې ايمانه هم نهٔ وو لکه دا اوس چې ئې سرونه په کرپوانونو ننويستي دي او تش اسويلي کوي—

دا داسې وطن دے چرته چې څوک سندرې وئيلې شي، هغوي تبليغيان شي او چې چاته د وطن د اوسېدونکو د حفاظت ذمه واري ور په غاړه ده، هغوي سندرې جوړوي—

د پښتنو خاوره د امن او خوشحالۍ خاوره وه، دلته بدها د انسان د زړهٔ او روح د رنځونو علاج په مينه او امن کښې موندلے وهٔ. دلته پير روښان د قلم او کتاب خبره کړې وه، دلته باچاخان د عدم تشدد او انسانانو د خدمت بېرغ پورته کړے وهٔ، دلته کودر د ديدن او مينې ځائے وهٔ، دلته حجره د جرګو مرکو او سندرو مرکز وهٔ، دلته مينه د بنګړو په شرنګ کښې احساسېده او دلته د هر کاڼي شاته د سيمې د اولس د ستر تاريخ قيصې او داستانونه پراته وو.

خو په دې خلقو لوبه عجيبه شوې ده. دوي د مذهب په نوم له علم او پرمختيا بې برخې شول او د امن په نامه د جنګ په لمبو کښې وسوزېدل. اوس دوي نهٔ واک لري او نهٔ ادراک، نهٔ زور لري او نهٔ اور.

نهٔ مو چا شور واورېدو نهٔ مو چېرته اور پورې کړو
جذبې د مينې خالي داسې له وجدانه نهٔ وې!

څو ورځې وړاندې د پاکستان فوځ ویاند ادعا وکړه چې په قبائیلي سیمو کښې ئې د ضربِ عضب په نامه په فوځي عملیاتو کښې خواوشا درې نیم زره وسله وال وژلي دي او لهٔ خېره فوځ د ترهګرو په ملا ماتولو کښې بریالے شوے دے. خو چا ته معلومه نهٔ شوه چې دا درې نیم زره وسله وال څوک وو؟ چرته ووژلے شول؟ ولې ووژلے شول او پهٔ کوم ځائے کښې خاورو ته وسپارلے شول؟

د جرنیل صاحب پهٔ دې دعویٰ لا بحثونه کېدل چې د کُرمې پهٔ مرکز پاړه چنار کښې بې چاودنې ۲۵ نور پښتانهٔ ووژل، نور کورونه وران شول، نورې دعوې وشوې، نورې ژمنې وشوې خو د قاتل درک ونهٔ لګېدو.

نن د پېښور "آرمي پبلک سکول" د یو سل دوویشت هاغه ماشومانو لومړے تلین لمانځلے کېږي چې پروسکال پهٔ شپاړسم دسمبر لهٔ خپل معصومیت او تنکیو ځوانیو لهٔ خاورو سره خاورې شول. د هغوي د مور پلار اوښکې لا وچې نهٔ دي، د هغوي زخمونه لا ورغلي نهٔ دي خو یو کار شوے دے او هغه دا چې د پاکستان فوځ د مطبوعاتو څانګې د هغوي پهٔ یاد کښې یوه سندره خپره کړې ده.

دا داسې وطن دے چرته چې څوک سندرې وئیلې شي، هغوي تبلیغیان شي او چې چا ته د وطن د اوسېدونکو د حفاظت ذمه واري ور پهٔ غاړه ده، هغوي سندرې جوړوي.

پهٔ دې بحث نهٔ کوو چې پهٔ دې سندره به د دغه ماشومانو مور پلار او خپلوخپلوانو ته څهٔ داډ ترلاسه شي کهٔ نهٔ. خو پهٔ دې سندره کښې چې پهٔ کومه خبره زور ورکړے شوے دے، هغه دا دے چې اوس به د وطن ماشومان د دښمن بچو ته زده کړې ورکوي.

دېره ښه خبره ده خو دښمن څوک دے؟

آیا دښمن هاغه وسله وال دے چې د نولسوه اتیایمه په لسیزه کښې مجاهد وهٔ او اوس ترهګر دے؟ آیا دښمن هاغه تعلیمي نظام دے چې له نفرت او تعصب بغېر نور څهٔ نهٔ ښائي؟ آیا [دښمن] د ریاست هاغه پالیسي ده چې له مخه ئې یو وسله وال بد او بل ښهٔ دے؟ آیا دښمنان هاغه وسله والې ډلې دي چې د پنجاب په ښارونو کښې مرکزونه لري، وسلې لري، اسونه لري، مال او دولت لري خو نهٔ د ریاست امنیتي ادارو ته ښکاري او نهٔ د میډیا چېنلونو ته؟

بله دا چې کهٔ د پاکستان ریاست مونږ ته خپل دښمن نهٔ ښائي یا ئې نهٔ شي ښودلے نو بیا ولې د دغه شان ترانو او سندرو له لارې زمونږ بچي د دغه پټ مخي او ناپېژندلي دښمن مخې ته ودروي؟

پهٔ سمندر جانان لاهو کړم

پهٔ کناره راسره څې داډ راکوينه

# ملاله مینه ده او مینه تل ژوندۍ وي!

د صوبې د اطلاعاتو وزير شاه فرمان وائي چې د هغهٔ حکومت د ملالې د متنازعه کتاب د مخکتنې د دستورې اجازت نهٔ شي ورکولے خو کهٔ لن ترې چا پوښتنه وکړله چې آیا دا کتاب دې لوستے دے نو غالب امکان دا دے چې ځواب به ئې پهٔ نهٔ کښې راځي.

د جنورۍ پهٔ اتويشتمه نېټه پهٔ پېښور کښې د مدني ټولنې او د پېښور پوهنتون د سیمئیزو مطالعاتو د مرکز (Area Studies Center) لهٔ خوا د سوات ملالې یوسفزۍ د کتاب "زهٔ ملاله یم" (I am Malala) د مخکتنې دستورې تابیا شوې وه خو دا دستوره ونهٔ شوه.

خدائے خبر چې د خیبر پښتونخوا حکومت دوو وزیرانو شاه فرمان او عنایت الله پهٔ زړهٔ کښې څهٔ راغلي وو چې ورومبے ئې د وائس چانسلر او رجسټرار لهٔ خوا د "ایریا سټډیز سېنټر" پهٔ مشر ډاکټر سرفراز خان فشار واچولو او چې پهٔ دغه هم کار ونهٔ شو نو د کېمپس د پولیسو مشر ئې ورپسې واستولو.

د دستورې منتظمین وائي، پولیسو ورته ووئیل چې د مخکتنې د دستورې د امنیت لپاره انتظام نهٔ شي کولے.

عجیبه خبره دا ده چې صوبائي حکومت د پېښور پهٔ جي ټي روډ د یو مذهبي ګوند د جلسې امنیت ساتلے شي خو پهٔ پوهنتون دننه د یوې علمي غونډې لهٔ امنیت ساتلو انکار کوي!

پهٔ پښتونخوا کښې د پښتنو لیکوالو پهٔ کتابونو بندیز خبره نوې نهٔ ده. یو

وخت داسې وه چې دلته د غني خان، رحمت شاه سائل او اجمل خټک په کتابونو بندېزونه وو. نن د هغوي فکرونه ژوندي دي، بلېږي، تيارې روښانه کوي، د منزل نوې لارې ښائي او چې چا بندېزونه لګولي وو، خلق ئې په نوم اخستو هم شرم احساسوي.

د صوبې د اطلاعاتو وزير شاه فرمان فرمائي،

"د هغهٔ حکومت د ملالې د متنازعه کتاب د مخکښې د دستورې اجازت نهٔ شي ورکولے." خو کهٔ نن ترې چا پوښتنه وکړه چې آيا دا کتاب دې لوستے دے نو غالب امکان دا دے چې ځواب به ئې په نهٔ کښې راځي. چې کتاب دې لوستے نهٔ دے نو بيا دا څنګه وائې چې متنازعه دے؟

ملاله د سوات ده. د هغې کتاب د دې سيمې په اړه دے. د نړۍ په لويو لويو پوهنتونونو او څېړنېزو مرکزونو کښې ورباندې بحثونه شوي دي. ستائينه ئې شوې ده، ولې چې هغه په دې وطن کښې د علم او شعور خبره کوي، د رڼا خبره کوي، ښکاره ئې کوي او ېې وېرې ئې کوي. ملاله وائي، "قلم تر تورې طاقتور دے." هغهٔ وائي، "بدلون به په علم او پوهه راځي." دا ګناه ده؟ په دې کښې کومه خبره متنازعه ده؟

بله دا چې کهٔ په پوهنتونونو کښې په کتابونو بحثونه نهٔ کېږي، کره او کوته ئې نهٔ کتلے کېږي نو چرته به کېږي؟

په پېښور کښې خو د ترهګرو بريدونو لهٔ کبله د کتابونو لوے لوے دوکانونه لا د وړاندې تړلے شوي دي. پوهان، ليکوالان او خبريالان په وېره کښې ژوند تيروي. اوس په علمي بحثونو هم بندېزونه لګولے کېږي. لکه چې د وطن واکداران لهٔ رڼا وېرېږي، لکه چې تيارو وېرولي دي. هر څهٔ چې دي خو د فطرت قانون دا دے چې رڼا تل تيارو ته ماتې ورکړې ده.

لیکلې ټکي مقدس وي. زمانې بدلې شي، حکومتونه بدل شي خو ټکي تل ژوندي وي. ملاله خو د مرګ سوداګرو په خپل اند کښېوژلې وه خو ژوند وګټله. مرګ ماتې وخوړه. نن هغه هم ژوندۍ ده، ټکي يې هم ژوندي دي ــــ لکه د مشالونو بلېږي. د نړۍ په هر کوټ کښې ورکو شوو کاروانونو ته د منزل لاره ښائي او هاغه ورځ لرې نهٔ ده چې د هندوکش لمنې به هم په خپلو پلوشو روښانه کړي. تور مخونه به څرګند کړي. دلته به د امن سندرې وئیلې کېږي، د رڼا خبره به کېږي او د انصاف په نوم به د انصاف وینې نهٔ تویولې کېږي!

ملاله مینه ده او مینه تل ژوندۍ وي!

۲۸ جنوري ۲۰۱۴

# ګل د ور خاړي

# خلق مات کو دي کښې ولې کړي؟

مینګوره ـــ خپل کور ماډل سکول ـــ د ماشومانو دستوره ـــ پۀ سټېج څو ګلونو ماشومانو د پښتنو د کلتوري ژوند یوه ټېبلو یوه ننداره وړاندې کوله. یوه ډېره ښائسته ماشومه چې د سوات روایتي کالي ئې اچولي دي او یو ښائسته رنګین منګے ئې پۀ توټي دے، ګودر لۀ ځي. ورسره اولسي موسیقي هم پۀ ناستو خلقو د پښتنو د وطن خواږۀ شیندي. دا ماشومه ډېره پۀ اعتماد ډېره پۀ باور ګام اخلي. پۀ مخ ئې د یوې حیاناکې پښتنې موسکا خوره ده او پۀ ټولو ماشومانو کښې ښکاره ده، څرګنده ده. لکه چې لۀ دې چې دا ننداره د پښتنو د کلتوري ژوند دا شېبه تکمیل ته نۀ رسېده. د دستورې نه وروستو ما وئیل دا ماشومه څوک ده؟ نو ملګري ضیاء الدین یوسفزي راته ډېر پۀ ویاړ ووئیل چې دا ملاله ده ـــ زما لور ده! او ما هم ومنله چې او دا هم د ضیاء الدین غوندې تکړه لیکوال او یې ډېرې مبارزې لور کېدې شي. دغه ملاله بیا ما پۀ میډیا، مېدان او د سوات پۀ لارو کوڅو کښې ولیده چې د هر جابر پۀ سترګو کښې ئې سترګې اچولې او هم دا خبره ئې کوله چې علم زما حق دے.

ملاله بیا د نړۍ د ټولو امن خوښو لُور او خور وګرځېده. هغې د امن نوبېل پرائز هم وګټلو. هغه د ټولې نړۍ د هاغه ماشومانو ملاله شوه چې د زده کړو نه بې برخې دي، د مینې نه بې برخې دي. هغه د پښتنو د قامي ژوند پۀ بحراني دور

کښې د امن، انسانیت او رڼا علامت وګرځېده.

نن چې زه هغه د نړۍ د لویو لویو عالمانو، پوهانو، لیکوالانو، اولسمشرانو، باچایانو او سیاستدانانو سره وینم نو ډېر ویارم. اګرچې د تیارو خاوندانو په کال ۲۰۱۲م کښې د هغې د ماشوموالي هغه موسکا ترورلې ده کومه چې ما د هغې په مخ په هغه دستوره کښې لیدلې وه خو د هغې د فکر رڼا اوس هم د هندوکش په لمنو کښې د راخورې شوې هرې تیارې کریوانونه شلوي.

کل د ورخارې خلق مات کودي کښې ولې کړي؟
دا په ما نن یوې ماشومې جینۍ سوال کړے دے

# هو!

هو! دا جنګ يو لېونے سپے وه چې زه ئې مات کړم، خوږ ئې کړم، و ې دردولم. زه ئې هم لېونے کړم چې اوس نه ځان پېژنم او نه جهان!

هو! دا جنګ د دې پېړۍ تر ټولو لويه الميه وه خو هر چا ورته له خپله نظره کتل. نوي نوي ټکي او نوي نوي اصطلاحات ئې ورله جوړ کړل."ډېزاسټر کېپيټاليزم" (Disaster Capitalism) او "وار اګېنسټ ټېرر" (War against Terror)،"درغلم ــ بيا درغلم"، "خوښ به دې شم" وغېره وغېره.....

هر چا خپله خپله خبره وکړه. زما چغه، زما اواز چکښې چا وانهٔورېدو. دا زما د مينې جذبه دومره لهٔ وجدانه خالي وه!

هو!

دا ځوبېم ځوبېم ځل دے چې دا لوبه ما بائيللې ده. پرون ئې د روس پهٔ نوم ټوټې ټوټې کړم، بې کوره ئې کړم، بې اوره ئې کړم او نن ئې د امريکې پهٔ نوم، د جهاد پهٔ نوم، د شريعت پهٔ نوم د هغه شته مسلمانۍ نه خلاص کړم!

زهٔ پوهه ولې نهٔ شوم؟ اوده ولې پاتې شوم؟

هو!

ما لا ماتې نهٔ ده خوړلې. زهٔ نن هم د خپل زړهٔ پهٔ مزار د خپلو اوښکو چراغان کوم خو زهٔ روان چرته يم؟ منزل مې څهٔ دے؟ لاره مې کومه ده؟

هو!

تاسې د جنګ خبره کوله، ما په قیصه خوانۍ او تکر کښې په خپلو وینو د عدم تشدد، صلحې او بشر دوستۍ داستانونه رقم کړل خو زما بچي بیا هم د جنګ په لمبو کښې وسوزېدل.

دا مونږ د تاریخ په کوم کوټ پېر تکر خوړلے دے؟

زمونږ د قربانیو د داستانونو په کمیونیکېشن کښې، د هغې په ابلاغ کښې اخر ستونزه څۀ ده؟

# زۀ د وطن د شهيدانو وينه!

د قيصه خوانۍ بازار د مودو مودو نه د دې سيمې د اوسېدونکو لوے تاريخي او کلتوري مرکز پاتې شوے دے. د ښار زړۀ دے. يو وخت وۀ چې دلته به د مينځني ختيځ نه هندوستان ته راتلونکو کاروانونو دمه کوله او د چايو په محفلونو کښې به ئې د خپلو مزلونو او وطنونو قيصې کولې، د ځان سره به ئې نوي فکرونه راوړل، نوې تجربې به ئې راوړلې. دا يوه اولسي اکېډيمي وه چرته چې به د بېلابېلو کلتورونو او اولسونو خلق راټولېدل او د يو بل نه به ئې زده کړې کولې.

کال نولسوه دېرشم وۀ. د اپريل د مياشتې درويشتمه نېټه وه. په ټول هندوستان کښې د برطانيې د استعمار په ضد احتجاجي تحريک ښۀ په زور کښې وۀ. د ګاندهي جي د سِول نافرمانۍ په مرسته کښې د باچاخان د خدائي خدمتګار تحريک غړي راټول شوي وو او د خپلو حقونو او خپلواکۍ غوښتنه ئې کوله. دا ټول د عدم تشدد د قافلې خلق وو چا چې د امن د لارې د خپلو حقونو په مبارزه يقين لرلو.

درې ورځې مخکښې په اتمانزو کښې د ازاد سکول په جلسه کښې پرېکړه شوې وه چې په درويشتم اپريل به خدائي خدمتګار او د کانګرس غړي راټولېږي او د پېرنګي استعمار په ضد به احتجاج کوي.

د صوبې ګورنر اولف کېرو وائي،

"د کانګرس خلق لږ وو نو مونږ د هغوي علاج کولے شو خو چې کله ورسره باچاخان ملګرے شو نو مونږ د خلقو په نيولو پېل وکړو."

په درويشتم اپريل چې کله خلق د ښار د مرکزي لارو نه راتېر شول او قيصه

خواني ته ورسېدل نو د کابل تاڼې مشر چې دا خلق ولیدل نو ګمان ئې وکړو چې دوي جوړې پۀ تاڼه د برید لپاره راټول شوي دي. هغۀ فوځ ته خواست وکړو چې راشي او د تاڼې حفاظت وکړي. لږه شېبه کښې د پېرنګي فوځ شپږ ټېنکونه راورسېدل. ورومبي ټېنک څوارلس کسان وچقول چې لس کسان پۀ هغۀ ځائے مړه شو او څلور سخت ژوبل شو.

پاو کم یوولس بجې ډزې پېل شوې او تر درېو بجو روانې وې. خلق راوړاندې کېدل، پۀ ډزو سُوري سُوري کېدل، راپرېوتل، مړۀ کېدل. پۀ دې کښې سکهان هم وو، هندوان هم وو او مسلمانان هم. ډېر پۀ دې کښې خدائي خدمتګار وو. د ښار کوڅې د هغوي پۀ وینو سرې پرتې وې. هر لور ته وحشت خور وۀ او د دوه نیم سوه نه تر درې سوه انسانان قرباني شول، پۀ وینو سرۀ شول او خاورې شول.

دا انسانان د دې خاورې هاغه سوچه او ریښتیني بچي وو چې د مذهب، نسل او قام د فرق نه بالا د خپلې مور خپلې خاورې لپاره مبارزې له راوتلي وو او پۀ دغه لاره کښې ئې د خپلو وینو او ارمانونو نذرانې ورکړې خو د تاریخ پۀ پاڼو کښې داسې ورک شو لکه چې هېڅ موجود نۀ وو!

نن هم پۀ قیصه خوانۍ کښې د دوي یادګار نرېدلے پروت دے. نن هم زمونږ ډېر پوهه او تعلیم یافته خلق د خپلې خاورې د شهیدانو د قربانیو نه خبر نۀ دي. نن هم هاغه زاړۀ یرغلګر پۀ یو نوي شکل کښې زمونږ کلي او بازارونه ورانوي. نن هم د ګلونو پۀ دغه ښار کښې د اور بارانونه کېږي.

خو د تاریخ ربښتیا کله هم نۀ مري او د تاریخ ربښتیا دا دي چې کۀ مونږ د خپلو مشرانو د دغه قربانیو نه زده کړه کړې وے. د شعور سترګې مو پرانستلې وے نو نن به ټوله پښتونخوا د قیصه خوانۍ بازار نۀ وۀ!

# قلم والا محسود!

یو محسود ټوپک والا محسود وۀ، بم والا محسود وۀ، تشدد والا محسود وۀ ـــ داسې محسود وۀ چې پۀ خلقو، د خپلې خبرې پۀ زور د منلو لپاره ئې هر څۀ ته اور لګولو ـــ

یو دا محسود دے چې د خپلې خاورې د حق خبره کوي، د خپل اولس د پرمختیا او ابادۍ وکالت کوي، د پاکستان او چین ترمینځ پۀ ترقیاتي منصوبو کښې د خپل قام برخه غواړي، پۀ دې تورو تیارو کښې د رڼا خبره کوي او څکه ئې کوي چې هغه پۀ دې خبره باور لري چې جنګ د دې خاورې مقدر نۀ دے.

د ریاستي پالیسۍ تر مخه ټوپک والا محسود مهم څکه وۀ چې هغۀ د سټراټیژیکي ډوروالي منصوبه پۀ مخ بوتله. پۀ دغه منصوبه کښې وینه د دې خاورې د بچو توئې ده خو ډالرې لاهور او پنډۍ ته راتلې. هغه دومره زورور وۀ، دومره واکمن وۀ چې د صوبې منتخب حکومت ته ئې پۀ یوه اونۍ کښې دننه د واک نه د لرې کېدو درکه ورکړې وه.

هغۀ چې د ځائې خلقو لپاره هر څومره بد وۀ خو د پاکستان پۀ ریاستي بیانیه کښې وطن پال او اسلام پال وۀ.

دا محسود قلم والا محسود دے. علم او شعور والا محسود دے. پۀ اولس کښې د شعور پیدا کولو لۀ لارې خپل حق غوښتونکے محسود دے او هم دغه

وجه دا ده چې نهٔ د رياست خوښ دے او نهٔ د رياستي ادارو.

دا هغهٔ محسود دے چې ملګري ئې د مريضانو نه بلها فيسونه اخلي، د دوايانو جوړوونکو کمپنيانو نه کمېشنې اخلي، نوي نوي ګاډي اخلي، لوے لوے کورونه جوړوي او دے هره ورځ کله اولسي غونډو ته او کله رياستي چارواکو ته دا خبره مخې ته پردي چې کهٔ چرې د پاکستان او چين ترمينځ د اقتصادي راهدارۍ پهٔ منصوبه کښې پښتنو ته خپله برخه ورکړې شي نو پهٔ دې خاوره د وينو سيلاب ودرېدے شي.

د هغهٔ اواز دا دے چې مونږ يوائې ستاسو جنګونو له نهٔ يو پيدا.

خو دا اواز د رياست د واکمنو خوښ نهٔ دے ځکه چې دا اواز د ابادۍ او بېدارۍ دے. ځکه چې دا اواز د پرمختيا او خوشحالۍ دے. خو دا اواز د بغاوت هم دے. دا اواز د هاغه رياستي پاليسۍ پهٔ ضد دے د کومې د لاندې چې پهٔ ملينونو خلق اوس هم د ايف سي أر (FCR) د تور قانون لاندې د خپلو بنيادي انساني حقونو نه بې برخې دي.

قلم والا محسود ډاکټر سېد عالم محسود دے چې تېره اونۍ ورته د پېښور پهٔ اسلاميه کالج پوهنتون کښې د چين پاکستان اقتصادي راهدارۍ پهٔ اړه سيمنار کښې د ګډون او پهٔ دغه منصوبه د خبرو بلنه ورکړې شوه خو دا بلنه هاغه وخت واپس واخستلې شوه، کله چې د بره نه د پوهنتون انتظاميې ته ووئيلے شو چې کهٔ قلم والا محسود خبره کوي نو بيا د منصوبه بندۍ وفاقي وزير پهٔ غونډه کښې برخه نهٔ شي اخستې.

يعنې ټوپک والا محسود سره د خبرو لپاره خو سوالونه او منتونه کېږي، د هغهٔ ډلې ته پهٔ پېښور کښې د دفتر ورکولو اعلانونه کېږي خو قلم والا محسود ته د خبرو اجازه هم نشته. يعنې د جمهوريت او بيان د ازادۍ ټولې خبرې، ټولې

دعوې د اباسين نه دې لور ته هېڅ قيمت نهٔ لري او کهٔ چرې داسې نهٔ ده نو بيا دې رياست د دې خبرې سپيناوے وکړي چې کهٔ چرې د علم لاره، د امن لاره او د شعور لاره وتړلې شي نو دې اولس سره به د خپلې خبرې کولو لپاره کومه لار پاتې شي؟

پهٔ اباسين جانان لاهو کړم
پهٔ کناره راسره ځې دا درا کوينه

٦ مئ ٢٠١٦م

# پښتونخوا څو مره بدله شوه؟

په خیبر پښتونخوا کښې مېشته پښتانهٔ د تېرو لسو کالو راهسې د یو لوے سیاسي، اقتصادي او ټولنیز بحران نه تېرېږي. کهٔ یو خوا پهٔ قبائیلي سیمو او سوات کښې د وسله والو بریدونو او د فوځ عملیاتو پهٔ زرګونو پښتانهٔ ووژل او پهٔ لکهونو نور ئې بې کوره کړل نو بل خوا د دوي ټولنیز او کلتوري ژوند هم د نوو ننګونو سره مخ شوے دے.

پهٔ دې صوبه کښې بېلابېلې سیاسي تجربې وشوې. پهٔ کال ۲۰۰۱م کښې چې کله د امریکې پهٔ مشرۍ کښې نړیوال ایتلاف پهٔ افغانستان کښې د طالبانو حکومت رانسکور کړو نو ورپسې د صوبې واک اختیار د متحده مجلس عمل پهٔ شکل کښې د مُلیانو لاس ته ورغلو. ډرامه دا وشوه چې د افغانستان نه پهٔ شا شوي وسله وال د کرښې دې اړخ ته راواوړېدل او هم د دغه مذهبي ډلو ځینې مشرانو ورله پناه ورکړه. د کابل او رلهٔ وزیرستانه او تر سواته ټولې سیمې ته وغزېد.

پهٔ کال ۲۰۰۷م کښې چې کله پښتون ملتپاله عوامي نېشنل ګوند انتخابات وګټل او یو ایتلافي حکومت ئې جوړ کړو نو پهٔ خیبر پښتونخوا او قبائیلي سیمو کښې د ترهګرۍ د لګېدلي اور لمبې د پښتنو تر حجرو، جوماتونو، ملي اتلانو د مزارونو او جرګو پورې راورسیدې. فوځ او استخباراتي ادارو چې هر څهٔ لوبه کوله خو وسله والو ډلو ته ئې عوامي نېشنل ګوند وروړاندې کړو. د هغه وخت د طالبانو مشر بیت الله محسود حکومت له د رکه ورکړه چې واک پرېږدي خو د عوامي نېشنل ګوند مشرانو دغه خبره رد کړه او زیاته ئې کړه چې مونږ اولس غوره کړي یو او د اولس پهٔ خوښه به حکومت کوو هم او پرېږدو هم. پهٔ

دغه پينځه کاله کښې که يو خوا په زرګونو تعليمي ادارې له مينځه لاړې نو بل خوا د عوامي نېشنل ګوند د ۸۰۰ نه ډېر سيمئيز مشران او کارکوونکي هم ووژلے شول. بيا هم حکومت ډېر بنيادي کار دا وکړو چې د ترهګرۍ په ضد ئې يو ښکاره او په ډانګ پټيلے دريځ خپل کړو او بل خوا ئې په صوبه کښې يو شمېر تعليمي ادارې او پوهنتونونه هم جوړ کړل.

عجيبه خبره دا ده چې د مذهبي ګوندونو لکه جميعت علماء اسلام او جماعت اسلامي مشرانو په دغه وخت کښې هم د طالبانو د سخت دريزۍ د مفکورې دفاع وکړه او د قاضي حسېن احمد غوندې سياسي مشر هم په ملاله يوسفزۍ د بريد نه وروستو د طالبانو په مرسته کښې يو کالم وليکلو. د پاکستان په ميډيا د طالبانو د کماندانانو مرکې نشر شوې او د پنجاب ځينې پخواني فوځي مشرانو او کالم ليکونکو طالبان داسې وړاندې کړل چې ګنې دوي خو د اسلام لپاره جنګ کوي او ازادي غوښتونکي دي.

زه په دې خبره نه پوهېږم چې مذهبي ډلې ولې د پښتنو نه اخلي او دفاع د هغوي د قاتلانو کوي. دوېمه دا چې دوي وخت په وخت د کشمير، فلسطين او افغانستان په نومونو د اولس جذبې راپاروې دي او احتجاجي جلوسونه ئې ويستلي دي خو د وسله والو طالبانو په بريدونو کښې د بې ګناه پښتنو په وژنه تل چپه خوله پاتې دي.

په کال ۲۰۱۳م کښې خيبر پښتونخوا حکومت د کرکټ د پخواني لوبغاړي عمران خان د سياسي ګوند تحريک انصاف لاسو ته ولوېدو. د انتخاباتو لپاره د کمپائن په موده کښې که يو خوا عمران خان لو ئې لو ئې سياسي غونډې کولې او په قامي ميډيا د مسيحا په شکل کښې وړاندې کېدو نو بل خوا د عوامي نېشنل ګوند مشران د طالبانو د بريدونو له کبله مجبوره وو چې د خپلو

کورونو او حجرو پورې محدود پاتې شي.

د خوند خبره دا هم وه چې عمران خان لو ئې لوئې جلسې په پنجاب کښې وکړې خو حکومت ئې په خیبر پښتونخوا کښې وکتلو. عمران خان چې په جلسو کښې ئې د بدلون خبره کوله، په خپل حکومت کښې جماعت اسلامي له هم لویه برخه ورکړه او وریسې ئې دا هم ومنله چې دواړه سیاسي گوندونه یو فکر لري.

د بدلون په نوم جوړ شوي د دغه انقلابي حکومت مشرانو که یو خوا د نصاب نه د پښتنو ملي اتلان وویستل نو بل خوا ئې په پېښور پوهنتون کښې د ملاله یوسفزۍ د کتاب د مخکتنې په دستوره بندېز ولگولو. عمران خان د ډرون بریدونو په ضد احتجاجي لاریون خو وکړو خو ولې چې کله د وزیرستان نه په لکهونو خلق خیبر پښتونخوا ته بې کوره شول نو نوموړي ووئیل چې بې کوره شوي خلقو ته اسانتیاوې ورکول د هغهٔ د حکومت ذمه واري نهٔ ده.

صوبائي حکومت د صوبې د پرمختیا په ځائے ډېر زور د نوازشریف د حکومت په ضد په احتجاجي غونډو ورکړو او نتیجه ئې دا شوه چې د صوبې د پرمختیا بودیجه (Budget) خرڅ نهٔ شو. د بدلون حکومت دا بدلون راوستو چې په سیاست کښې د تشدد عنصر لا قوي شو او خاص کر د پښتنو د نوي کهول ځوانانو صلاحیتونه د خپلې خاورې او خپل اولس د ستونزو هوارولو په ځائے د بې مطلبه احتجاجونو نه ځار شو. په دې کښې زهٔ په ذاتي توگه ملتپاله گوندونه هم ذمه وار گنړم چې د ځوان کهول سیاسي تربیت ته ئې هغه پام نهٔ دے کړے کوم چې پکار دے او د خپل مینځي اختلاف لهٔ کبله ئې مذهبي ډلو او جعلي انقلابیانو ته دا خبره نوره هم اسانه کړې ده چې پښتانهٔ ځوانان کله د اسلام په نوم او کله د بدلون په نوم د خپلو مفاداتو لهٔ پاره په کار راولي.

د صوبې حکومت اوس اوس په صوبه کښې بلدیاتي انتخابات وکړل. د سیاسي

مشرانو په وېنا د صوبې په تاریخ د ټولو نه زیاته درغلي هم په دې انتخاباتو کښې شوې ده. عن تر دې چې د تحریک انصاف اتحادي ګوند جماعت اسلامي هم په انتخاباتو کښې د بد انتظامۍ او درغلۍ په ضد احتجاج کړے دے. د خالي په ورځ د دریو سیاسي ګوندونو عوامي نېشنل ګوند، جمیعت علماء اسلام او پیپلز ګوند مشرانو په پېښور کښې دیوې غونډې نه وروستو پرېکړه وکړه چې چونکې تحریک انصاف د حکومت کولو اخلاقي جواز بائیللے دے نو د روانې میاشتې ترلسمې نېټې دې واک پرېږدي، ګنې د حکومت په ضد به په ټوله صوبه کښې په احتجاجي تحریک لاس پورې کړي.

دا به اوس کتلے شي چې دغه احتجاجي تحریک تر کومه حده بریالے کېږي خو یوه خبره ښکاره ده او هغه دا چې:

"رښتیا رارسي نو دروغو به کلي وران کړي وي."

# پښتونخوا او د پښتنو قامي تحریک

د پښتون وطن د سیاسي تحریک قیصه د قربانیو قیصه ده. د داسې لازواله قربانیو قیصه چې د خاورې د خوېندو، مېندو او مشرانو په وینو لړلې ده. د باچاخان خدائي خدمتګار تحریک، د خان شهید تحریک، د قبائیلي مشرانو او سپین روبو مبارزه، د امن جرګو د غړیو قربانۍ ـــ عن تر دې چې زمونږ پې شمېره ماشومان د دغه مبارزې په لاره کښې ووژلے شول او وېرولے شول، پې کوره شول او پې اوره شول.

وخته دلته چې قدم پردې نو په خیال پرده

د دې خاورې کالي بوټي شهیدان دي

خو په کلونو خورې د دې اوږدې مبارزې په بدل کښې نۀ مونږ مزل لنډ کړو او نۀ منزل ته ورسېدو. د وزیرستان پښتون د پېښور پښتون نۀ پېژني او د پېښور پښتون د کابل د پښتون لۀ حاله نۀ دے خبر. نۀ یواځې د خپل تاریخ نه بېل شوي یو بلکې په نفسیاتي، جذباتي او قامي حوالو د یو بل نه هم ډېر لرې یو. د کرښې دواړه اړخ ته پښتانۀ چې یو بل ته نزدې کېږي نو بلها موده به غواړي.

په سیاسي مېدان کښې زمونږ دوه ملتپال ګوندونه عوامي نېشنل ګوند او پښتونخوا ملي عوامي ګوند په خپل خپل ځاےخو د اولس د حقونو لپاره اوازونه اوچتوي، غونډې او جرګې هم کوي خو نۀ د یو بل سره ناستې ته اماده دي او نۀ په شریکه سیاسي مبارزې ته غاړه ږدي.

دا اوس چې د کرښې دواړه اړخ ته د اور لمبې بلې دي او پښتانۀ د خپل تاریخي، کلتوري او قامي وجود د قائم ساتلو لپاره د لویو ننګونو سره مخ دي، د ملتپاله

سیاسي مشرانو ترمینځ "کمیونیکېشن ډیسکنېکټ" (Communication Disconnect) د ځوان کهول په یوه لویه برخه کښې د خپل سیاسي تحریک په اړه بدګمانۍ راولاړې کړې دي.

سیاسي مبارزه په سیاسي پوهه کېږي او د سیاسي پوهې لپاره د سیاسي غونډو، بحثونو، جرګو، مرکو او څېړنیزو مرکزونو ضرورت وي. داسې څېړنیز مرکزونه چرته چې پښتانهٔ عالمان، پوهان او سیاسي مشران د وطن د قدرتي وسیلو او د هغې نه د ګټې اخستو په لارو چارو غور او فکر وکړي او قام خبر کړي چې دغه وسیلې زمونږ نه څوک او څنګه وړي.

د سیاسي شعارونو او چغو سره سره مونږ ته د خپلې خاورې په سینه کښې د پټو خزانو په اړه د سائنسي علم او پوهې ضرورت دے. د دغې سره سره بايد په قامي ستونزو او غوښتنو هم څېړنې وشي او په یو علمي انداز کښې دا د نړۍ مخې ته کېښودلے شي. په دې اړه په هېواد دننه او بهر د پښتنو عالمانو، سائنس پوهانو او پوهه ځوانانو یو "نېټ ورک" (Network) جوړول او د هغې نه کار اخستل ډېر مهم دي خو تر اوسه یو پښتون ملتپاله ګوند په دغه اړه څهٔ کار نهٔ دے کړے.

په دې جنګ کښې زمونږ څومره خلق ووژلے شو او ولې ووژل شو؟

څومره خونې رنګې شوې او ولې رنګې شوې؟

د تعلیم او روغتیا "انفراسټرکچر" (Infrastructure) ته څومره زیان ورسېد؟

څومره خلق بې کوره شو او اوس کوم ځائے دي، څنګه ژوند کوي؟

زمونږ په نوم راغلې په بلینونو ډالرې چرته لاړې او په دغه اړه مونږ کله او څنګه اواز اوچت کړے دے؟

زمونږ بجلي، اوبهٔ، معدنيات، ځنګلونه څومره دي؟ څنګه دي؟ او ګټه تاوان ئې چا ته رسي؟

زمونږ قامي منزل څهٔ دے؟ پهٔ پاکستان دننه د خپلو حقونو ګټل او کهٔ نه د قامي خپلواکۍ منزل ګټل؟

دا او داسې نورې ډېرې پوښتنې دي چې ځواب غواړي او دا هله کېدے شي چې زمونږ قامي تحريک د جذباتو د بهير نه ځان رابهر کړي او پهٔ سړه سينه ور باندې غور او فکر وکړي. پهٔ دغه لړ کښې مونږ د نوي دور د ميډيا او سوشل نيټ ورک نه لويه ګټه ترلاسه کولې شو. د نوې ميډيا او نوو هنرونو نه د ګټې اخستو پهٔ وسيله مونږ کولے شو چې د دومره فاصلو باوجود يو "نېشنل ډايلاګ" (National Dialogue) يا قامي مکالمې ته لاره هواره کړو خو د دې هر څهٔ د مشرۍ لپاره به د قامي تحريک مشران راوړاندې کېږي او د هاغه خلقو سره به خبره کوي کوم چې د دغې ميډيا او ټېکنالوجۍ نه د کار اخستو پهٔ چل پوهېږي.

د قامي خپلواکۍ لاره اوږده وي، صبر او زغم غواړي خو د دغه اوږد مزل لپاره اولس پوهول او هغوي قامي مبارزې ته اماده کول د سياسي تحريک ذمه واري ده.

عوامي نېشنل ګوند د خپل واک پهٔ موده کښې د "باچاخان فاونډېشن" او "باچاخان تعليمي مرکز" پهٔ نومونو ځينې ادارې خو پرانستلې دي او دغه ادارو تر څهٔ حده خپل کار هم کړے دے خو ولې داسې ادارې د ژوندۍ پاتې ساتلو لپاره ډېرو پنګو او وسيلو ته ارتيا لري. پښتونخوا ملي عوامي ګوند پهٔ بلوچستان کښې حکومت لري. اوس به ګورو چې حکومت ئې د خپل اولس د ذهني او قامي بيدارۍ لپاره د داسې څېړنيزو مرکزونو او پوهنتونونو جوړولو

ته پام کوي او که نه؟

دا کار په سندھ ایالت کښې د پیپلز گوند د مشر ذوالفقار علي بهټو په وخت کښې شوے دے. هلته د سندھ په ژبه، کلتور، سیاست او تاریخ یو شمېر علمي ادارې کار کوي. "متحده قومي مومنټ" خپله "میډیا سېل" او "تهنک ټېنک" (Think tank) لري. په پنجاب کښې یو شمېر څېړنیزې ادارې، خبریالان او پوهان د پنجاب د کټې لپاره کار کوي خو پښتونخوا چرته چې خاوره د سرو زرو ده، باصلاحیته ځوانان او پېغلې لري، پوهه مشران او سپین روبي ئې دي، کلتوري نخښې او یادگارونه لري او د خدائے تول نعمتونه لري ـــ بیا هم په دغه غنې خاوره غریبي ده، بې وزلي ده او ناپوهي ده. ډېر علتونه ئې کېدے شي خو زما په نزد لویه وجه ئې دا ده چې مونږ د نوي دور د غوښتنو سره سم د خپل سیاسي تحریک په بیا منظم کولو او د دې بنیاد په علم او پوهه کېښودلو کښې لا تراوسه نهٔ یو بریالي شوي او ځکه لا تر اوسه پرهٔ هم یو او مرهٔ هم.

زما د زړهٔ د باغ مالیاره!
چې ته راځې نو زهٔ به خاورې ایرې یمه

۲ مئ ۲۰۱۵

# ژوند ته وګوره ژوند څهٔ دے؟

د دوه زره نهم (۲۰۰۹م) کال ــ د جرمنۍ بون ښار ــ واورې او بارانونه. زهٔ سره د يو شو خبرياﻻنو ملګرو د "کلتورونو ترمينځ د رابطو" يا Intercultural Communication پهٔ موضوع د يو تربيتي پروګرام لپاره تلے وم. دا زما اروپا ته ورومبے سفر وهٔ. د تربيتي پروګرام پهٔ يوه برخه کښې د پېښور او چارسدې نه د راوړے شوو ځينې کلتوري توکو ننداارتون هم کېدو. پهٔ دې کښې ډېرد ګندهارا تهذيب توکي وو . د المان غرېړېدلو د لوئي ودانۍ سره نزدې پهٔ يو هال کښې دغه ننداارتون کېدو. پهٔ دغه ننداارتون کښې د بدها د وختو ډېرې قيمتي مجسمې او اثار ډېر پهٔ کراو او محنت ځاے کړے شوي وو . پهٔ هال دننه يو شو جرمنيان پهٔ کار بوخت وو .د دغه اثارو لپاره ئې ځايونه سمول.د رڼا بندوبست ئې کوهٔ. زهٔ چې سره د ملګرو هال ته ننوتم نو د پېښور موزيم ډائريکټر مې وليدو. يو اړخ ته سترے ستومانه وﻻړ وهٔ. د سلام دعا نه وروستو مو خبرې پېل کړې.ما ترې د ننداارتون پهٔ اړه پوښتنه وکړه. هغهٔ وئيل د اروپائي ټولنې غرو هېوادونو دا توکي راغوښتي دي او غواړي چې د ننداارتونونو پهٔ وسيله خپل ځوان کهول د ګندهارا تهذيب او د دې سره د تړلو قدرونو نه خبر کړي. ما سوچ کوهٔ، دلته دې اثارو ته دومره اهميت ورکولے کېږي، څېړنې پرې کېږي، کتابونه پرې ليکلے کېږي او پهٔ زرګونو خلق ئې ليدو له راځي او هلته پسې مونږ پلکونه او څټکي راخستي وي، کله ترې سرونه وهو او کله پښې!

خېرا ما د موزيم د مشر نه هسې پوښتنه وکړه چې دومره سترے ولې ښکارې؟

هغهٔ وخاندل، وئیل ئې د دې جرمنیانو سره د پرون راهسې پهٔ کار اخته یم. ظالمان نهٔ ستړي کېږي او نهٔ د چایو دمه کوي. پهٔ پېښور کښې تر دې دمه به مونږ لس ځله چاے څښلې وې، څو څو ځله به مو دمه کړې وه. زهٔ پوهه شوم او چې پهٔ هال مې نظر وځغلوهٔ نو ومې لیدل چې هلته پهٔ کار بوخت جرمنیان د پاخهٔ عمر ښځې اوسړي وو خو داسې پهٔ شوق او چټکتیا ئې کار کوهٔ چې سل ځوانان ترې ځار شه.

# د مینګورې ښار

د بدهایانو د وختو اُدهیانه او د اوس مینګوره ـــ یوازې یو ښار نهٔ دے. دا د دې سیمې د پښتنو د تاریخي، کلتوري او ټولنیز تاریخ یوه پیاوړې حواله هم ده. دا یوازې کاروباري مرکز نهٔ دے، دا د یوسفزو د جرګې او باچاهۍ کور هم دے. دا یوازې د باچاهۍ کور نهٔ دے، دا د دې سیمې د سیاسي، مذهبي او کلتوري تحریکونو د پړاو او د دمې ځائے هم دے.

مینګوره د خپلې جغرافیې، جوړښت او تاریخ پهٔ حواله پهٔ دې خاوره د زرګونو کلونو د تهذیبي مزل یادګار دے. هرڅو کهٔ دا اوس د ابادۍ د ډېروالي، بدانتظامۍ او متعلقه حکومتي ادارو د غفلت، سازش او بې رحمۍ ښکار دے خو اوس هم د دې ښار پهٔ زړهٔ کښې مینه درزیږي ـــ اوس هم دلته د مرغزار پهٔ لمن کښې د ښائست د سپرلو ګلونه ټوکیږي. اوس هم دلته د سوات د سیند پهٔ غاړه د نوي ژوند او نوې مینې لوظونه کیږي. دا ښار کهٔ هر څومره تالا شوے دے، زخمي شوے دے، پهٔ وینو سُور شوے او پهٔ اوښکو لوند شوے دے خو دې ښار کله هم د مینې سندره او د امن خبره هېره کړې نهٔ ده.

# ملنګه دوه ګټې دې وکړې...

ملنګه! ته چې چرته هم ګرځې په ګل پسې ګرځې، ښائستونه ګورې، رنګونه ګورې۔ دا خو ډېره لويه بې وفائي ده ـــ دا خومينه نهٔ ده، خودغرضي ده.

ملنګ لکه چې د دې پوښتنې په شا د مُلا په شرارت پوهه شو. د هغهٔ په مکر پوهه شو. وئيل ئې، مُلا! د هرڅا سره خپله خپله پيمانه ده، خپله خپله کاسه ده. د ښائست باچا د ښائستونو بارانونه عام کړي دي خو د هغې ادراک او احساس ئې خاص ساتلے دے. ستا پيمانه وړه ده نو تا د ښائست سمندرونه پرېښې دي او يو څاڅکي درنه يو دوه خطا کړي دي. زهٔ خو وايم چې د ښائست هرې شيبې ته مې د خپل زړهٔ تيارې وينځلې!

د مُلا سترګې ورانې شوې. روايتي وسلې ته ئې لاس کړهٔ. وئيل ئې، ملنګه! تهٔ د مينې د مذهب کافر ئې.

ملنګ لهٔ خپل شلېدلي ګرېوانه يو اوچ شوے ګل راوشکوهٔ، مُلا له ئې ورکړو او په خپله لار روان شو.

څو کامه ئې نهٔ وو اخستي چې پښه نيو ـــ لے شو ـــ بيا ئې مُلا ته مخ کړو...

هوښياره مُلا! خوښه ستا ده خو د مينې په مذهب کښې کفر نهٔ وي.

# بې عنوانه

د هاغه غرهٔ پهٔ لمن کښې د تورې شپې څادر خور شو. بره پهٔ اسمان کښې مشالونه بل شو. ښکته د لرګو جوړې د دې کوډلې پهٔ يوه کوټه کښې ستورے وېرقېدلو. ټول جهان لکه چې د پلوشو جامې اچولې وې ــ لکه چې شونډو پرانستلو ته، خبرو کولو ته څهٔ حاجت نهٔ وهٔ پاتې شوے. ستورو د خاموشۍ پهٔ ژبه د زړهٔ حالونه وونيل او د هاغه لوړ غرهٔ پهٔ سر سپينو واورو اور اخستے وهٔ.

# ګندهارا

ګندهارا (د پښتنو کور) يو وخت د امن او تهذيب کور وه. دلته د بشر دوستۍ او ژوند پرستۍ خبرې کېدې او دلته د ښائست سندرې وئيلې کېدې! د هنرونو زمکه وه ـــ د مستو سپرلو او د رنګونو زمکه وه.

زمونږه د کلتورې زوال او تخليقي جمود له دې بل ښهٔ ثبوت څهٔ کېدے شي چې اوس پښتنو لهٔ د پينځه يا شپږو رنګونو نه د ډېرو رنګونو نومونه هم نهٔ ورځي. اسماني رنګ ته هم شين وائي، شين ته هم شين وائي او اُودې ته هم شين وائي. اوس پهٔ دې خاوره هنر سپک او بې کارې درنه ده. اوس دلته سندرې ګونګې دي او ګودرونه شاړ پراتهٔ دي.

ملګرې وائي څهٔ به کوو؟ زهٔ وايم تر هاغه وخته به د امن خبره کوو، تر هاغه وخته به ګلونه کرو، تر هاغه وخته به د مينې سندرې وايو، تر هاغه وخته به يو بل معاف کوو، تر هاغه وخته به نهٔ ودرېږو، تر کومه چې د هندوکش پهٔ لمن کښې يو بل "اشوکا" خپله ټوره ماته نهٔ کړي او امن ته، مينې ته او بشر دوستۍ ته خپل سر ټيټ نهٔ کړي.

# هاغه شپه

هم دغه شان د باران شپه وه. هم دغه شان تنهائي وه. هم دغه شان ته ما ته رایاد شوې. هم دغه شان ما دې خپل زړۀ له دلاسې ورکولې—

ما وئیل، ته چې نۀ یې نو هیڅ به هم نۀ وي!

نن ته نۀ یې!

خو دنیا هم هغه شان ده. ژوند هم هغه شان د یو بې نشانه منزل پۀ لور روان دے. زمانه هم هغه شان د کتې او تاوان حسابونه کوي.

شپه هم هغه شان سبا کیږي او سبا هم هغه شان د تیارو کوهي ته غورځیږي.

نن هر څۀ شته دے، یو ته نۀ یې! زۀ اوس پۀ دې هر څۀ هر څۀ، څۀ وکړم؟

# د پښتونولۍ Antithesis

هندوستان تقسيم شو. د هندو وطن هندوستان، د مسلمان وطن پاکستان! د سوات د رياست هندوانو او سکهانو هم خپل کهې بار کړې، هندوستان ته روان شو. د سوات والي خبر شو. سمدستي ئې خپل خلق ولېږل او د هندوانو او سکهانو قافلې ئې راستنې کړې او دا باور ئې ورکړو چې رياست به ستاسو حفاظت کوي او تر کله چې رياست وۀ، د هغوي د مال، ځان او عزت حفاظت ئې وکړو. ځائي خلقو ورسره لکه د خپلو خپلوانو تعلق ساتو. پۀ پښتنو کښې چې هر څومره هم بد دي خو دا يو ښۀ ئې پې مثاله دي چې کله ئې هم د مذهب پۀ نوم د چا نه نفرت نۀ دے کړے، ظلم ئې نۀ دے کړے. دا اوس چې د پښتنو پۀ خاوره کوم ظلم زور روان دے، دا د سُوچه پښتنولۍ Antithesis دے!

# مزل خپله منزل دے!

ژوند څو شېبې دي او د انسان ارمان ډېر لوے دے. ما وئيل ملنګه! نو بيا تکميل څۀ دے؟ منزل ته به رسېدل څنګه کېږي؟ قيصه څۀ ده؟
وئيل ئې، مزل خپله منزل دے! تکميل دا دے چې ژوند دې لۀ نفرته، لۀ وحشته او لۀ بې انصافۍ پاک وي او د مينې لارې دې اسانې شي!

# دا قافله د ابد پهٔ لور روانه ده

سرتور ملنگ به وئيل، د ژوند پهٔ سفر کښې هر انسان دا فکر کوي چې دا امتحان پاس کړم نو ښهٔ به شم، خوندي به شم، "سيکېور"(secure) به شم خو هر نوے پړاو د ځان سره نوې انسيکېوريټي (insecurity) راوړي، نوې پوښتنې او نوي سوالونه راوړي. مزل کېږي، لوبه روانه وي او هم دغه شان د ژوند مزے لنډېږي.

بيا هم مونږ چرته ځو نهٔ. هم دلته وو، دلته به يو. د روح انعکاس به بدلېږي. کله به ګل شي، کله به ازغ شي، کله به سپوږمۍ شي، کله به ستورے شي، کله رنګ او کله ساز، کله درد او کله درمان، کله وصال او کله خوب ـــ

دا قافله د ابد پهٔ لور روانه ده، روانه به وي. کهٔ نن جدا شو سبا به بيا سره يو ځاے شو. نن درسره اوښکې او ساندې شريکوم ـــ سبا به درسره سندرې شريکې کړم. کهٔ يو ګل خاورې شي، سل نور ګلونه به ترې راوټوکېږي.

# رېږېدلې پاڼې

نن سرتور ملنګ د خزان د وړومبو باړانونو نه خوندونه اخستل ــ تړوله ورځ لکه د يو ناقراره روح په ځنګلونو ګرځېده ــ د اونو رېږېدلو پاڼو ته په تماشه وه ــ خړو خاورو ته په تماشه وه ــ ما وئيل.

ملنګه! دومره خاموشي ؟ څه خو وايه!

وئيل ئې،

ګوره! دا رېږېدلې پاڼې څومره په قرار پرتې دي ـ له ژونده ازادې شوې نو بې قراري ئې هم ختمه شوه ـ

لپه ئې د پاڼو ډکه کړه او په سر ئې وشيندلې ــ وئيل ئې،

هنګامه د ژوند سره تړلې ده ـ غورځېدل، خاورې کېدل، له ژونده تېرېدل خو د قرار غېږې ته پرېوتل دي.

هغه لا دا وېنا ختمه کړې نه وه چې يو ې زړې اوني ته ډډه شو ـ په سينه ئې لاس کېښود او هم دومره ئې ووئيل،

"ښه ده چې شونډې مې اور نه اخلي
د زړه د سره مې لمبې خولې له راځينه"

## جنګ: نهٔ ختمېدونکې لوبه ـــ

وائي چې يو ځل د ازادۍ مبارز فقير خان ايپي د انګريزانو خلاف يوې جرګې ته وينا کوله. ډېر پهٔ جوش کښې لګيا وهٔ او خلق سخت جذباتي شوي وو. پهٔ دې کښې يو تن پاڅېدو او چغه ئې کړه،

غيرتيانو! پاڅئ چې پرې ورځو!

پهٔ دې کښې پسې يو بل تن پاڅېدو او ورته ئې ووئيل،

لږ ساړهٔ خوره! صبر کوه! فقير صاحب داسې لوبه شروع کړې ده چې غېرتيان به پهٔ غېرت سترې شي او بې غېرته به پهٔ بې غېرتۍ!

# د يادونو جبر!

د پېښور باران ــ د پوهنتون معطره فضا ــ تش جېب، خو د مينې ډک زړهٔ ــ د ياد جبر هم لکه د تاريخ جبر دے. ما د ښائست او مستۍ په کور کښې هم بې قراره ساتي. مونږ چې هر څومره له ځانه وتښتو، هم ځان ته رسو.

کهٔ لېونے درپسې نهٔ شوم
د زړهٔ سودا به مې تر عمره پورې وينه

# مينه

مينه د انسانيت د ټولو نه ستر او ښائسته خوب دے! د ازل او ابد ټول مزلونه، ټولې لوړې ژورې، ټولې ساندې او سندرې، ټولې شپې او سحرونه د دغه خوب په تعبير پسې ګرځي!

په مادې کومه بلا کړې
په مخ مې غبرګې اوښکې ځي خوله د کومه

# وېش

د سنګ مرمرو نه د جوړ لوے جومات په خوا کښې يې څو که يې کوره ماشومان په خاورو کښې لوغړېدې او د مُلا صاحب د عطرو خوشبوئي د کلي په کوڅو کښې ګرځي!

# سيز فائر

زمونږ د بهر جنګ زمونږ د دننه روان جنګ "ريفلېکشن" (Reflection) دے، انعکاس ئې دے، هينداره ئې ده. دا جنګ زمونږ د ماضئ او د حال جنګ دے. دا جنګ د روايت او نوي دور د غوښتنو جنګ دے. دا جنګ زمونږ د زړونو او د ذهنونو جنګ دے. دا جنګ د پي لارې شوو عقيدو او وهمونو جنګ دے او دا جنګ اوسنے نۀ دے. لۀ پېړيو راهسې روان دے. د بهر د جنګ پائې ته د رسولو لپاره وړومبے خپل دننه "سيز فائر" پکار دے!

# د پېښور ښار

پېښور کهٔ هر څومره تاریخي ښار دے، مبارک ښار دے، د ګلونو ښار دے خو د خلیل جبران د مقدس ښار پهٔ شان دلته هم د چا سترګې نشته او د چا لاسونه!

# د دیر نواب

پهٔ اسلام اباد کښې د قائد اعظم پوهنتون د تاریخ استاذ او ډېر محترم مشر ډاکټر وقار علي شاه راته یو ځل وئیل چې ورومبے باچاخان او د هغهٔ ملګري فضل محمود مخفي د دیر پهٔ خال سیمه کښې یوه مدرسه پرانسته. دا مدرسه د سیمې خلقو ډېره خوښه کړه او پهٔ ډېره لږه موده کښې خواوشا دوه نیم سوه ماشومانو پکښې داخله واخسته. د دیر نواب د مدرسې نه خبر شو نو یواځې دا نهٔ چې باچاخان ئې لهٔ خپل ریاسته وویستو، بلکې هغه مدرسه ئې هم رنګه کړه.

# نعرې

د هندوکش په لمنه کښې اوازونه پورته کېږي، "لر او بر يو افغان"، "يو قدم يو اواز"، "انقلاب انقلاب"، "اے ولي! ته يو اشاره وکړه! بيا ئې تماشه وکړه!"، "له بولانه تر چترالهـــ پښتون يو کړه محمود خانه!"
څو شپې لا تېرې نه وې چې دغه ټول شعارونه، دغه ټول اوازونه ورک شي. تشې انګازې ئې پاتې شي او لږ ساعت وروستو هيڅ هم پاتې نه شي ـــ اوازونه هم نه او انګازې هم نه!

# د زړهٔ جهان

د زړهٔ جهان د دې جهان نه ډېر لوے دے، فراخه دے. د زړهٔ په جهان کښې کرښې نشته، دېوالونه نشته ـــ د نسل، د ژبې او د مذهب په بنیاد امتیاز نشته. د زړهٔ جهان د انسان د ورک شوي خوب جهان دے!

د سر خاوندان کاروباریان دي، سائنسدانان دي، پوهان دي، قاضیان دي، تول پارسنګ والا دي، ګټې تاوان والا دي.

د زړهٔ خاوندان شاعران دي، سندرغاړي دي، درویشان دي، ملنګان دي، هنرمندان دي، فنکاران دي، ولیان دي، مینې والا دي، درد والا دي!

او دا دواړه د ژوند د پرمختنګ او ښائست لپاره پکار دي، ضروري دي، مهم دي. "وائټل"(vital)دي.

کېدے شي د نوي دور "کرائسز" (Crisis) دا وي چې سر والا په زړهٔ والا زورور شوے دے، ځکه ورځ تر ورځه د انسانانو ترمینځ د وینې او مینې رشتې کمزورې شوې دي، "کمرشلائز" (commercialized) شوې دي، پیکه شوې دي او بدرنګه شوې دي.

د مینې یو تولګے عالم دے

د بېلتانهٔ سره د شام پورې فوځونه

# ته او زه

لږ ژوند او لوے ارمان! يوه شېبه او د ښائست باران! نه ازل پاتې شي او نه ابد، نه "زه" پاتې شم او نه "ته".
يو سوز پاتې شي يا يو ساز ـــ زما او ستا څه رشته؟ څه تعلق؟
زمکه څنګه اسمان ته رسېدې شي؟
او که ورسي نو آيا قيامت به نه شي؟

# سياسي ګوندونه

سیاسي ګوندونه د سیاسي تربیت لپاره وي، د سیاسي شعور د ودې لپاره وي، د مکالمې او خبرو اترو د کلچر قوي کولو لپاره وي او د هر سیاسي ګوند د نظریې سره سم د بدلون او پرمختیا لپاره وي. که چرې د یو سیاسي ګوند غړے د مکالمې په ځائے ستغې سپورې وائي او کنځل کوي او د ټوپک او کوتک خبره کوي نو یا خو د دغه سیاسي ګوند نظریه د رښتیاو په ځائے په دروغو او جعل سازۍ ولاړه ده او یا ئې په تربیتي پروګرام کښې ډېره لویه ستونزه ده.

# نصیب د چاڼې او بۀ زۀ در خېژومه؟

چین د خزانو خولې پرانستې دي. د افریقې د پاره هم شپېته بلیونه ډالره!
سرتور ملنګ وائي، "چائنا مینز بزنس"(China means Business)!چین
معامله کول غواړي. د چین جنګ د اقتصاد او د بې وزله هېوادونو په وسیلو
قبضه کول دي. ما وئیل بنه ده کنه، مونږ به ورسره هم شو.
هغۀ وئیل، مخکښې ګوروچې څۀ کېږي خو تاریخ څۀ نور څۀ وائي!
هغۀ وئیل،بونېریه! ګوره پښتنو د ترهګرۍ په جنګ کښې قربانۍ ډېرې
ورکړې خو ګټه ترې بل چا یوړه.
د دې نه وړاندې د سوویت یونین په جهاد کښې تر ټولو ډېره وینه د پښتنو توئې
شوه خو نۀ د خپل وطن خاوندان شول او نۀ د خپل نظام.
هغۀ وئیل، مونږ بنۀ "ډپلومېټس" (Diplomats) څکه نۀ یو چې مونږ یو نۀ یو!
جنګ او ډپلومېسي دواړه د قام په زور کېږي. تر اوسه خو مونږ لا د چین سره
مخ په مخ ناست هم نۀ یو او چې د پرمختیا کومې منصوبې دي، د هغې مشري د
پنجاب سیاسي او فوځي قیادت کوي.
پاس په کمر ولاړه کله!
نصیب د چاڼې او بۀ زۀ در خېژومه

# صوفي محمد زنده باد!

ښهٔ راته یاد شي چې مُلا صوفي محمد خلق لمسولي وو چې کهٔ شریعت غواړئ نو د ملا کنډ او امبېلې لارې وتړئ، بسترې پهٔ سرک واچوئ او تر هغې پرا تهٔ اوسئ چې د شریعت اعلان لهٔ وي شوے. بیا خبر راغے چې ملېشې پهٔ شریعت غوښتونکو ډزې کړې دي ـــ صوفي محمد بچ وهٔ او د بونېر خلق پکښې مړهٔ شو.

پهٔ افغانستان د امریکې یرغل وشو او صوفي محمد بیا لس زره خلق د ځان سره د کرښې هغه اړخ ته واړول. ورته ئې وئیل، یو مسلمان د لسو کافرو برابر دے خو صوفي محمد دا ځل بیا خپل لښکرونه پرېښودل. هغوي د اور پهٔ لمبو کښې وسوزېدل او یا د زندان تیارو وخوړل او صوفي محمد یو ځل بیا د غازي پهٔ توګه وطن ته راستون شو او دا ځل ورسره خپل زوم فضل الله هم وهٔ.

بیا د صوفي محمد د شریعت خپسه د هغهٔ پهٔ زوم کېښناسته او دومره لویه او زوروره شوه چې د دې خاورې او د دې خلقو د ژوند ټول خواږهٔ ئې وخوړل. وېره ئې خوره کړه او د ظلم بازار ئې ګرم کړو.

سرتور ملنګ وائي، دا کوم شریعت دے چې د انساني ژوند د ښائسته کولو، توازن راوستو، د ښو او بدو د شعور قوي کولو او د انسان د وینې د حرمت یقیني کولو پهٔ ځائے وېره ترهه او کرکه خوروي، وینه تویه وي او د انساني پرمختګ لاره نیسي؟

بیا هم ـــ صوفي محمد زنده باد! زر ځله زنده باد!

خو دا اولس تښې کوپړی، مرده باد!

# باچاخاني پکار ده؟

باچاخاني خدمت ته وائي، بشردوستۍ او انسانيت ته وائي، امن ته وائي، ورورولۍ ته وائي، مينې ته وائي او حرمت دوينې ته وائي ــــ
باچاخاني عبادت دے، عقيدت دے، قرباني ده، خپلواکي ده، عزت دے.
په باچاخانۍ کښې به څۀ وي؟ باچاخانۍ کښې به نفرت، تعصب او اختلاف نۀ وي. په خدمت کښې به اختلاف نۀ وي، اختلاف د خود غرضۍ نه پيدا کيږي. باچاخاني جنګ سالاري نۀ ده، "قلم سالاري" ده. باچاخاني "هيومنيزم" (Humanism) او "محبت ازم" دے.
باچاخانۍ کښې به د مور او خور د پېروني عزت وي، زياتے به نۀ وي، حق تلفي به نۀ وي، بې عزتي به نۀ وي ــــ جهالت به نۀ وي، تيارۀ به نۀ وي.

# زۀ او کائنات یو یُو!

زمان او مکان هېڅ معنا نۀ لري. وخت بس یو خیال دے، یوه اُټیړیا ده. زۀ او کائنات یو یُو. ګل او بلبل، درد او درمان ټول یو دي، دیو بل سره تړلي دي. هغه د غني خان خبره چې یو نۀ وي بل به هم نۀ وي او چې وي نو وي به دواړه. لاس پۀ لاس، غاړه پۀ غاړه.

# پښتون

پښتون متلوّن مزاجه دے ــ په يو ځائے قرار نهٔ مومي. بې قرارې د دهٔ په فطرت کښې ده، پهٔ نفسياتو کښې ئې ده ــ ټول عمر د خپل زړهٔ او ذهن تر مېنځ په جګړه وي. د خپل نن او سبا تر مېنځ ګېر وي.

فطرت ئې ښه ډېره مستي اوښه ډېره خانه بدوشي غواړي خو نظام ئې ځان ته دومره ټائيټ (tight)او مقابلتي (Competitive) ساتلے دے چې اکثر پښتق پکښې هم د دهٔ ماتېږي.

دے پهٔ ولايت او امريکا وګرځي، د عربو پهٔ رېګستانونو کښې وسوزي او د انډونېشيا او ملائشيا جزيرې چاڼ کړي. خو د پلار وهل او د مور مينه ورته يادېږي.

دے مغروره دے خو د ياقربان يو او از ته پهٔ لپو لپو اوښکې هم توئې کړي. دې ظالم تل د جنګ مېدان ګټلے او د زړهٔ مېدان بائيللے دے.

# Convert

کال دوه زره شپږم (۲۰۰۶م) وه. په سوات کښې مې د یو ټي وي پروګرام لپاره د ماشومانو د رنځونو د لوموړي متخصص ډاکټر ګیان پرکاش سره مرکه کوله.

زه پوهه نه شوم او پوښتنه مې تري وکړه چې ډاکټر صاحب! ستاسو کورنۍ دلته کله اباده شوې ده. له کومه ځایه راغلې ده؟

ډاکټر صاحب ماته په حیرانتیا وکتل. او وې وئیل.

دا خو زما د نیکونو خاوره ده، زه خو دلته له پېړیو اباد یم. هو! دا ده چې زه په خپله عقیده پاتې یم او ته convert شوے يې!

# د مرګ قصيدې

مونږ ژوند کوو که ژوند تېروو؟ مودې وشوې چې زمونږ نه ژوند هېر دے او مونږ له ژوندنه هېر يو. په کومه کچه چې په دې خاوره د مرګ "ګلوريفيکېشن" (glorification) کېږي، مرګ ښائسته ښودلے کېږي، قصيدې ورته وئيلې کېږي ـــ هم دومره به د ژوند ساه ګانې لنډېږي!

# خدايه څهٔ شو هغهٔ ښکلې خلق؟

پهٔ دې دنيا کښې ځينې خلق داسې دي چې دا جهان پرې ښائسته دے. د چا لهٔ کبله چې د ژوند د صحرا سره غرمه او طوفانونه د زغملو وړ دي. جان آقا الکوزے يو داسې انسان وهٔ چې پهٔ خپله کهٔ هر څومره زړهٔ چاودے وهٔ خو نورو له د مسته او خوشحالۍ سپرلے وهٔ. پهٔ انسانانو مئين وهٔ او د يارانو يار وهٔ.

زهٔ چې پراګ ته پهٔ ورومبي ځل راغلم نو د الکوزي صاحب مېلمه وم. بيا خبر شوم چې کهٔ هر پښتون پراګ ته راغلے دے او هغه ترې خبر شوے دے نو مېلمه کړے ئې دے، مينه ئې ورکړې ده او نازولے ئې دے. هغهٔ د کنېډا او اروپا پهٔ ستړي ژوند کښې هم د پښتونولۍ قدرونه ژوندي ساتلي وو.

الکوزي ورمه ورځ سترګې پټې کړې. د الکوزي مينه او يادونه به ژوندي وي.

خدا ے خبر چې د جهان ښکلي به څهٔ کړي؟
قلندر مومند کهٔ ئې وخته وفات شي

۱۶ ستمبر ۲۰۱۵

# ازلي جنګ

د تيارې او رڼا جنګ زمونږ د زړونو او ذهنونو تر مينځ روانه جګړه ده. دا جنګ ازلي دے. د دې جنګ تر مينځ کله کله د امن او انسان د خوشحالو سازونه او سندرې اوچتې شي ــــ خو دا سندرې، دا هيلې او دا محبتونه لا خپلو خوږو ته، خپل کلائميکس (climax)ته رسېدلي نهٔ وي چې بيا د جنګ نغاره وغږېږي.

د جنګ ملګري ډېر دي!

# جمود

وېره، بدګماني، بې یقیني لکه چې اوس زمونږ د نفسیاتو او ژوند ته زمونږ د "اپروچ" (Approach)برخه جوړه شوې ده. زمونږ کلتوري او ټولنیز جوړښتونه مات شو. نوي مو لا جوړ کړي نهٔ دي. قیصه کښې دا نهٔ چې "ټرنېنګ پوائنټ" (turning point)نهٔ راځي، ولې نهٔ راځي خو د قیصې مرکزي کردارونه لا د ماضي د تیارو نه نهٔ دي وتلي. انرشیا(inertia) ده، جمود دے او لوبه لا د شریکې نهٔ ده!

# چې وطن وران شي

د میډیټېرینین سمندرګي (Mediterranean Sea) په سینه کښې څومره ارمانونه ډوب شو، څومره خوبونه اوبو یوړل؟

هره ورځ په زرګونو خلق له اسیا او افریقه په غرونو او ځنګلونو راتېرېږي او اروپا ته د رسېدو په هڅه کښې د وخت او قانون په کړېچونو کښې ورکېږي.

چې وطن وران شي، د ژوند ټولې لارې ورانې ویجاړې شي!

# هره شېبه يوه معجزه ده

سهوړمې د زمانې د ټولو محبتونو قيصې په خپلو پلوشو کښې راوشيندلې او د سيند په مخ لکه د ستورو وپرقېدلې.

هره شېبه يوه معجزه ده!

# د هوارې لارې چارې

څومره لویه پښتونخوا ده!

څومره "ریسورسیز رچ" (resources rich) او شتمنه پښتونخوا ده!

ـــ خو یو منظم او په مالي پنګو سنبال څېړنیز مرکز نهٔ لري. یو داسې پوهنتون نهٔ لري چرته چې نوے کهول خپل تاریخ، کلتور او ټولنې ته په ورپېښو سیاسي، اقتصادي او روحاني ستونزو کار وکړي او د هوارې لارې چارې ئې پیدا کړي او دا هر څوک مني چې پښتانهٔ د پې وقوفتیا ترحده مېلمه دوسته دي. د لسو زرو ډوډۍ دربانډې خورې خو کهٔ په قامي کار کښې د مرستې لپاره ترې دوه روپۍ غواړې نو دا ورته تاوان ښکاري.

دا پرابلم چرته دے؟ ستونزه څهٔ ده؟ دا "ډیسکنېکټ" (Disconnect) څنګه او کله و شو؟ لوبه څهٔ ده؟ او د لوبې قانون څهٔ دے؟

ـــ د دې پوښتنو د ځواب پیدا کولو بغېر کاروان مخکښې څنګه تلے شي؟

# زما د زړهٔ ناکاره رنځه!

زما د وطن خلق چې مينه هم کوي نو د باور لپاره د ځان د قربانۍ نه کمه خبره نهٔ کوي ـــ ځکه چې د مرګ نه په کمه خو بيا پښتونولي کمزورې کېږي. ټولې سندرې د جدايۍ، ټولې قيصې د پې وسۍ!

قربانۍ او غم ښهٔ شے دے نو خومره ښهٔ شے دے؟

او دا انسانان په يو کل د څومره سپرلو مينه ماتوي. څومره ئې ستائي او کله د دغه يو کل دومره لوے خراج درکړي چې خپل ټول کړي ګناهونه او ثوابونه درنه هېر کړي.

خوشحالي کلچر دے! څهٔ خلق په لږ څهٔ رضا شي او څوک په ډېر څهٔ نهٔ!

دا نفسياتي مسئله هم ده. په وېره کښې، په تيارو کښې، په ناپوهۍ کښې، د خوشحالۍ تخم څنګه زرغون شي؟ څنګه وده وکړي؟

زما د زړهٔ ناکاره رنځه

نهٔ دې دارُو شته نهٔ دې حال وئيلے شمه

# کفاره

د سپرلي مازيګر د ټول جهان ښائستونه په خپله لمن کښې راواخستهٔ او د لېوني په پېښو کښې ئې وشيندل ــ سوز او ساز سره يوځائے شول او د ګل په شونډو څو ورکې شوې سندرې وشورېدې.
وخت لکه چې ديو پښتواني درد کفاره ادا کړه.
او لېوني د خپل زړهٔ په کعبه کښې د محبت تر ټولو لويه سجده وکړه.

# په ظاهر په باطن سپين سپيځلي خلق

زه چې دا ځل پېښور ته لاړم نو پېښور رښتيا چې بدل شوے وه. خلق ډېر په منډه وو. نوي نوي شاپنګ مالونه هم پرانستے شوي وو خو د ښار په لارو کوڅو او بازارونو کښې وېره، بې باوري، بې يقينۍ او بې وسي هم ډېره شوې وه.

دا يو عجيبه احساس وه ـــ لکه زه چې په خپل ښار کښې ورک شوے وم. ما د ځينې پوښتنو ځوابونه غوښتل. انسان وم، ما هم هيله غوښته، ډاډ او باور مې غوښتو.

دغې احساس په حيات اباد کښې د قدرمن ډاکټر راج ولي شاه خټک کور ته ورسولم. ډاکټر صاحب يو ډېر ښائسته او خوږ انسان وه، يو ډېر سپېڅلے پښتون وه، يو ډېر لوے عالم وه او په هغه د يو آئيډيل پښتون مينه ماتېده. جنتونه دې ئې نصيب شي ـــ آمين!

پاس په کمر ورته ولاړ وم
چې د جانان مخ ئې قبلې ته واړونه

# د هغه لوی ښار...

د هغه لوی ښار د لوئې قلعې د لويو دېوالونو شا ته د شنهٔ باغ په مینځ کښې یو ملنګ ناست دے. بادشاه راشي د ملنګ په پښو پرېوځي او وائي،

بابا! د سلطنت لوے جنګ له ځم، د برې دعا راته وکړه!

ملنګ يوه تېره کريکه وباسي، د قلعې دروازې ته وګوري او د سترګو په رپ کښې ورک شي. په اسمان د وينې سرې کرښې وېرقېږي. بادشاه له ملنګه پاتې شوے کچکول راواخلي، له خاورو ئې ډک کړي او په خپل سر ئې وپاشي!

# قامي مباحثه

اروپائي قامونو دوه جهاني جنګونه ولیدل او د ملینونو خلقو قربانۍ ئې ورکړې. خپل مینځي کرښو او تعصب ته ئې پهٔ مخه ښهٔ ووئیل او خپلو نسلونو له ئې د امن او پرمختیا ډالۍ ورکړه.

پښتنو هم پهٔ لکهونو سرونه قربان کړل. کورونه او حجرې ئې ورانې شوې خو د امن لپاره،د سولې لپاره او د پرمختیا لپاره قامي مباحثې (National Dialogue)ته لا ناست نهٔ دي. دا مباحثه به زمونږ د کلي کور او بازار نه پېل کېږي او د کرښې دواړه اړخ ته اباد قامونه به پکښې برخه اخلي.

# قامي سائيکي

زمونږ په قامي سائيکي (National Psyche) کښې اذيت پسندي اغږلې شوې ده. زمونږ ټول روماني داستانونه لکه يوسف خان او شيربانو، ادم خان او درخانۍ، شېرعالم او ميمونۍ او داسې نور ټل په ټرېجيډي (Tragedy) يا الميه ختمېږي. په نورې جدايۍ او په نورو ژړاګانو پائې ته رسي. د فطرت په رنګونو ښائسته د مينې په دې خاوره مينه کول ولې دومره زړهٔ چاودے او ارمان ژن کار دے؟

يه شېرعالمه خدائے دې غرق کا
د تما کو په پاڼو چا کړي مرګونه؟

# د خوشحالۍ په کلتور کښې...

خوشحالي کلچر دے او دا خوشحالي د خپلواکۍ، مينې، انصاف او امن د زړۀ نه راوځي ـــ دا خوشحالي د قام د اولسي سندرو او سازونو په شکل کښې خپل اظهار کوي او د ادب، ډرامې او تهېټر په شکل کښې پوره نسلونه مستانه ساتي. د خوشحالۍ په کلتورونو کښې د هر موسم، د هرې شپې، د هر ګل، د هر ازغي خپل خپل قيمت وي، خپل خپل ناز او ادائې وي ـــ

د خوشحالۍ په کلتور کښې اوښکې او وينې په ځايه نۀ توئېږي او د خوشحالۍ په کلتور کښې د انسان خوشحالي تر ټولو لويه نيکي ده.

# د کلتوري تاریخ غلطي

ټوله نړۍ بدله شوه. بادشاهۍ رانسکورې شوې. زور واکي په جمهوري نظام بدله شوه. د بشر حقونه او د انسان د خوشحالۍ خوبونه د ژوندي او بېداره قامونو د اجنډې په سر کښې ځائے شول. سائنس او ټېکنالوجۍ خلا ته، اسمانونو ته د تګ لارې هوارې کړې.

خو!

مودې وشوې چې د هندوکش په لمنو کښې د سېرلو په ځائے د اور باران ورېږي. پېړۍ تېرې شوې چې دلته غربي او پې وسي ده.

ستونزه کوم ځائے کښې ده؟

دا زړۀ چاودون به کله سر ته رسي؟

زمونږ نه په خپل سیاسي او کلتوري تاریخ کښې څۀ غلطۍ شوې دي چې دومره لویه سزا ئې را ته رارسي؟

# ياد

ياد ډېر زورور شے دے.

مونږ که د سبا په لور هر څومره مزل وکړو، بيا هم د پرون ياد مونږ د خپل حصار نه بهر وتلو ته نه پرېږدي.

ياد ډېر زورور شے دے.

# ادبي تحريک

د کرښې دواړه اړخ ته اورد هېواد نه بهر د پښتنو د سياسي تحريک په مقابله کښې د هغوي ادبي تحريک ډېر فعال دے. ډېر کرندے دے.

سياسي تحريک ئې وېشلے شوے دے، بې سمته دے او ماضي پرست دے.

ادبي تحريک ئې روښان فکره دے، ژوند پرست دے او "وائبرانټ" (Vibrant) دے. په موجوده وخت کښې دغه هيله کېدې شي چې کله ئې سياسي تحريک د ادبي تحريک نه الهام واخلي، نو دے به ورسره هم د منزل په لار سم شي.

## یون

لنډه دا چې نهٔ څوک د خدائے لهٔ مملکته وتلے شي او نهٔ د خپل ضمیر لهٔ مملکته. سحر د شپې پهٔ غېږه کښې اودهٔ شي او چې سترګې وغړوي نو د ځان سره دریا سمندرونه راوړي.

خو کله کله مزلونه د منزل پهٔ لاره کښې ورک شي، فنا شي.

بیا هم چرته سانده شي او چرته سندره شي.

# بدبختي

زمونږ سياسي مشرتابه د خپل قام د کتلو دېرې موقعې داسې بائيللې وې چې يا به ورسره اولس ودرېدو ته امادة نهٔ وهٔ او يا مشران به د مصلحت ښکار شول خو اوس اولس امادة دے.

نو ے کهول تر څهٔ حده بېدار دے خو لهٔ بدهٔ مرغه مشران يو ځا ے کېدو ته او د اولسي پاڅون لپاره لار ښودنې ته غاړه نهٔ ږدي. کېدے شي د ليډرشپ د دې کرائسز نه زمونږ د بدبختۍ د تاريخ يو نو ے باب پېل کېږي.

# اثاثه

مونږ سره څه دي؟
مونږ سره څو توپکې او پټکي دي—
يو څو ماتې شوې ټوټې دي—
يو څو کچه دېوالونه او څو سوزېدلې سندرې دي.

# وړومبۍ جرګه

وئيل ئې، نړۍ د يو بل جهاني جنګ په مېنځ کښې ده.
ما وئيل، دا ولې؟
حېرانه شوه ــــ وئيل ئې، تا ته نهٔ ده معلومه چې څهٔ موده پس به انسان لهٔ ځانه تنګ شي، د ځان سره به په جنګ شي. وئيل، ئې کوره! امن ته بې لهٔ زړهٔ، بې لهٔ ځان سره د روغې بله لار نشته. ټول به اول د ځان سره او بيا لهٔ ځانه ګېر چاپېره دنيا سره روغه کوو.
وړومبۍ جرګه به په خپل ځان کوو.

# سپرلے

سپرلے د ګل هم دے او د بلبل هم ـــ
د ساز هم دے او د سرېندې هم ـــ
د ارمان هم دے او د خوب هم ـــ
سپرلے وائي هم دې ته چې دا به همه ګیر وي، د هر چا به وي، د تور ګل به هم وي او د سپین ګل هم ـــ د پېښور به هم وي او د کابل هم.

# د نفرتونو کر

ژوند خدمت دے او خدمت عبادت دے خو دا عبادت هغه څوک کولے شي چې د ژوند په ښائست باور لري. د مهذبې نړۍ په پوهنتونونو کښې په زرګونو خلق ناست دي څېړنې کوي، ایجادونه کوي، دوایانې جوړوي او د ټولو مرام دا دے چې نورو انسانانو له خوشحالي ورکړي.

مونږ ټوله ورځ ناست یو د نفرتونو کر کوو ـــ د مذهب په نوم، د قومیت په نوم، د "نېشنل انټرسټ"(ملي ګټې) په نوم ـــ

نهٔ خوب وینو، نهٔ د سحر هرکلے کوو، نهٔ د ځان محاسبه کوو.

په مونږ کښې څومره خلق دي چې د جنت په طمع ئې دا دنیا دوزخ کړېده؟ چې د خپل دوه ګزه قبر پراخه کولو د پاره ئې دا دنیا د خدائے په مخلوق تنګه کړې ده.

مونږ کر دا زغو کوو او لارې څاروچې سپر لے به راشي!

زمونږ خپل کور وران ویجاړ پروت دے او د نورو خلقو د کورونو غم خوړلي یو. مونږ د ثواب او ګناه په نوم د ژوند ټول ښائستونه او ټولې سپېڅلې جذبې وژلې دي.

مونږ څوک یو؟ څهٔ یو؟ زمونږ د ژوند مرام څهٔ دے؟

او لهٔ ټولو لویه پوښتنه دا ده چې مونږ خپلو بچو ته، خپلو راروانو نسلونو ته څهٔ پرېږدو؟ د جهالت تورتمونه او که د امید روښانه سحرونه؟

# زهٔ دا نهٔ منم!

زهٔ دا منم چې د هرې خاورې خپله خوشبو وي، د هر وطن خپل رومانس وي، د هر قام خپل تاريخ وي، خپله ورځ او شپه ئې وي.
د هرې چپې خپل خمار وي، د هرې سپوږمۍ خپل ستورې وي، د هر "تهيسيز" (Thesis) يو خپل "اينټي تهيسيز" (Antithesis) وي.
زهٔ دا منم چې زما وطن هم د تاريخ ځانګو ده. دلته هر بوټے دارو او هر ګل خوشبودار دے. هره سندره نيمګړې ده خو خوږه ده ـــ هر پلار د عظمت غر دے او هره مور قرباني ده.
زهٔ دا منم چې زمونږ د دنګو غرونو پهٔ سرونو واورې او پهٔ ويخ کښې ئې ګلونه ورېږي. دا د ګندهارا مرکز، دا د شېرشاه او احمد شاه کور، دا د خوشحال خان، باچاخان او خان شهيد د خوبونو انځور ـــ دا د رنګينو لوپټو، ژوندو سيندونو او د مينې پهٔ وعدو د ابادو کودرونو وطن دے.
زهٔ دا منم!
خو!
زهٔ دا نهٔ منم چې پهٔ دې وطن کښې به د پېغلو سر سرتور وي او ورونه به ئې پهٔ پردو خبراتونو کښې سپي پهٔ دانګونو وهي.
زهٔ دا نهٔ منم چې د دې وطن پهٔ وينو به نور ښارونه روښانه وي او دلته به د تيارو باچائي وي.
زهٔ دا نهٔ منم چې د لعلونو پهٔ وطن کښې به خلق د يوې نمرۍ ډوډۍ لپاره د خپلو ارمانونو قتل کوي.

زۀ دا نۀ منم چې د ترۀ زوے تربور دے.

زۀ دا نۀ منم چې د دې غنې وطن ځوانان به هنر او روزګار نۀ لري او مشران به ئې پرې څۀ کار نۀ لري.

زۀ دا نۀ منم چې خور، لُور د پردې دېران خځله ده.

زۀ دا نۀ منم چې زما د بچو سکولونه به پۀ بمې چاودنو کنبې الوځي او زۀ به راټېوندې ته اجتماع له ځم.

زۀ دا نۀ منم چې زمونږ کور کلے به سوزي خو نۀ به اواز اوچتېږي. نۀ به زمکه شلېږي او نۀ به د انقلاب چغه پورته کېږي.

زۀ دا نۀ منم!

# زمونږ سندرې

زمونږ سندرې د ماضۍ په تيارو او د حال په شورماشور کښې زمونږ د ورکو شوو ارمانونو اوازونه دي، زمونږ د نيمګړو خوبونو تصويرونه دي.

دا سندرې زمونږ سوشل هسټري ده، زمونږ د کلتوري ژوند بنيادونه دي.

دا سندرې خوندي ساتل پکار دي. کېدے شي تاريخ يو بل چورلک وخوري او سبا ئې زمونږ نه څوک پوښتنه وکړي.

د ټوپې جنګ خو مو بائيللے دے ـــ هسې نۀ چې د قلم جنګ هم وبائيلو!

# ازاد او خپلوا که خلق

زهٔ هر سهار د خپل کور سره نزدې د ځنګل نه راتلونکي د مرغيو د چغار سره پاڅم. دغه اواز د ژوند په دې شور ماشور کښې د مينې او معصوميت تر ټولو سپېڅلے اظهار وي چې ما تر ډېره وخته په خپل خمار کښې ساتي.

دا ښائي چې دا خاوره د فطرت اواز ته هر کلے وائي، ستائينه ئې کوي.

دا ښائي چې څنګه د دې وطن خلق ازاد او خپلوا که دي، هم دغه شان ئې مرغئ هم دي.

دا ښائي چې د غلامۍ په تيارو کښې کېر کلي او ښارونه سندرې نهٔ شي وئيلې.

دا ښائي چې ازادي امن او امن ازادي ده. د وېرې او ترهې نه ازادي، د زور ظلم نه ازادي، د وهم نه ازادي او د نفرت او تعصب نه ازادي.

او ازادي د هر انسان او هرې مرغئ يو شان حق دے!

# ورکې سندرې، ورک خوبونه

پهٔ هغه شپه ملنګ د خپلو اوښکو امېلونه د انسان د ورکو شوو ارمانونو پهٔ مزار کېښودل او د ستورو د کاروان سره لاړو. اوس پهٔ دغه کلي کښې نهٔ څوک د مينې سندرې وائي او نهٔ خوبونه وينې!

# نیمګړې قیصې

د دې وطن د هر غرهٔ پهٔ لمن کښې، د هر سیند پهٔ غاړه، د هر یو رېړ ېدلي کلي او هرې ویجاړې شوې ځوانۍ تر شا قیصې پرتې دي. دا قیصې څهٔ د مینې دي، څهٔ د وینې دي، څهٔ خوږې دي څهٔ ترخې دي، څهٔ د ژوند دي څهٔ د جانان دي ـــــ

دا قیصې هم دومره نیمګړې دي څومره چې پهٔ دې خاوره ژوند نیمګړے دے.

# کلتوري وده

د ښکلو هنرونو د ودې نه بغير د يو قوم کلتوري وده ممکنه نهٔ ده، ځکه چې ښکلي هنرونه هاغه خلق تخليق کوي چې د ژوند د هر درد او سندرې سره مينه لري او پهٔ معنا ئې پوهېږي.

مرهٔ خلق د ژوند د جنون او د جانان د قيصې نه ناخبره خلق تخليق نهٔ شي کولے، ژوند نهٔ شي ستائيلے او هم دغه وجه ده چې نهٔ کلتور جوړولے شي او نهٔ ئې د وخت د بدلون سره سم بوتللے شي.

# هاغه شپه

توره شپه ده خو د مرغزار په لمنه د سپوږمۍ د پلوشو څادر راخور دے. په فضا کښې د ځنګلي ګلونو خوشبو د چا د وجود خواږهٔ راوړي. د ايلم په سر د لا ټپنونو کاروان روان دے.

د تاريخ د تسلسل کاروان!

د يوې لېونۍ مينې د لټون کاروان!

د ژوندون کاروان!

ناڅاپه تيارهٔ شي ـــ سپوږمۍ تندر ونيسي. زهٔ د رڼا په لټون کښې د لا ټپنونو لور ته وګورم!

هلته هم د اخيري لا ټپن رڼا په اخري ځل د خپل ژوندي پاتې کېدو هڅه وکړي او مړه شي.

# Many a Nations Came and Hurled Their Bolts at Us!

د چيک جمهوریت نه ګېرچاپېره د جرمن، روس او استریا غونډي لوے طاقتونه پراته دي او وخت په وخت پرې دغه طاقتونو یرغلونه هم کړي دي خو د چیک جمهوریت یوه خبنته هم نهٔ ده ماته شوې ـــ

تاریخي عمارتونه، تهېترونه، پُلونه او پوهنتونونه ئې محفوظ پاتې شوي دي.

زهٔ اکثر دلته د دې خلقو نه پوښتنه کوم چې دا څنګه ممکنه وه او دوي راته وائي چې چيک قام د يورپ په زړهٔ کښې يو څوملیونه اولس دے. لږه ئې زمکه ده، لږ ئې وسائل دي او دوي په دې حقیقت خبر دي نو چرته ئې هم د کوم لوے طاقت سره ښکر نهٔ دے اړم کړے. خو داسې هم نهٔ چې مزاحمت ئې نهٔ دے کړے. دوي د ډپلوميسۍ نه کار اخستے دے، د عقل او هوښيارتيا نه ئې کار اخستے دے. خپله ژبه او قامي شعور ئې ژوندے ساتلے دے او دغه شان ئې د خپل کور او وطن حفاظت کړے دے.

ماونیل، مونږ خو ټول د ثورې په ژبه خبره کړې ده، ټول عمر مو د ټوپک لاره خپله کړې ده، د جوش لمبو ته مو د انګلي دي ـــ

نن مو کور هم وران دے او کور هم!

# د ریاست مرام

د هر ریاست څهٔ مرام وي. هره سیاسي ټولنه چې جوړیږي، شا ته ئې څهٔ فکر، څهٔ خوب، څهٔ ارمان وي. ریاست د خپلو وګړو د ځان، مال او عزت حفاظت کوي. د هغو د صلاحیتونو د لا قوي کولو او د هغوي د خوشحالۍ لپاره فرصتونه پیدا کوي او د هغوي هیلې او شناخت ژوندے ساتي.

چې یو ریاست دا څو بنیادي کارونه نهٔ شي کولے، هاغه ریاست ځنګل بللے کیږي او د ځنګل باچا ازمرے وي!

هغه ریاستي نظام چې خپل خلق بې کوره کړي، بې عزته ئې کړي او بیا ئې خرڅ کړي ـــ هغه ریاستي نظام، د کوم د لاندې چې پهٔ یوه صوبه کښې خلق پهٔ ګولیو او بمونو کښې مري او پهٔ بله صوبه کښې نوي نوي ښارونه اباديږي، نوي نوي خوبونه رښتیا کیږي ـــ یو داسې نظام دے چې پهٔ دروغو او خودغرضۍ ولاړ دے ـــ د مذهب پهٔ نوم پهٔ دوکانداري ولاړ دے او دا نظام چې تر کومه وي، لکه د مار به خپل بچي خوري.

# مکالمه

ما وئیل، ملنګه! دا جنګ ولې دے؟ دا نفرتونه ولې ډېر دي؟ دا اورونه ولې بلېږي؟

ملنګ ما ته په زیر زیر وکتل، موسکے شو، وئیل ئې، بونېریه! رښتیا اورېدل غواړې او که هسې تپوسونه کوې؟

ما وئیل، ملنګه! والله د ډېر وخت نه په دې فکر کښې یم چې اخر زمونږ په دې خیبر کښې څه دي چې دا لنډ تنګ ژوند هم په ارام نه شو تېرولے؟

ملنګ وئیل، خبرې ډېرې دي خو زه به درته یوه قیصه وکړم ـــ قیصه داسې ده چې په افریقه کښې داسې سیمې شته چرته چې څوک څه غلا، شوکه یا جنګ جګړه وکړي، څه غلطي وکړي نو د کلي خلق فکر یوسي چې اخر څه وجه ده چې د دې سړي نه دا ناروا وشوه؟ سستم کښې څه ستونزه ده او که نه دغه سړے د څه وسوسې یا زړه چاودون سره مخ دے؟ خلق راټول شي او د کلي په مرکزي چوک یا مېدان کښې د هغه سره خبره کوي، جرګه ورسره کوي ـــ شرموي ئې نه، همدردي ورسره ښائي. بیا هغه د څه وخت لپاره یواځې پرېږدي چې د ځان محاسبه وکړي او دغه شان د انسانانو اصلاح کوي ـــ کافر کوي ئې نه. سمې لارې ته، د انسانیت لارې ته ئې راولي.

ما وئیل، ملنګه! دا خو سمه ده خو زما د سوالونو جواب؟

وئیل ئې، په خبرو کښې، په جرګو کښې او په مکالمو کښې ډېر زور دے. کله چې انسانان د خبرو کولو، د دلیل بیانولو او د مینې کولو توان وبائیلي نو په جنګ شي. دا جنګ وروسته د انسان دننه تیغ ووهي او بیا د وینو او لمبو په باران کښې راڅرګندېږي.

# د پښتون ډيمونائيزېشن

دوي ورته په انګريزۍ کښې "ډيمونائيزېشن" (Demonization) وائي. دا هاغه عمل دے چې پکښې په ډېره منظمه توګه يوه ډله يا قام د بلې ډلې يا قام سپکاوے کوي. د هغوي صفتونه هم داسې ښودلے کېږي لکه چې عېبونه ئې وي. د دې لپاره د تهېټر، ډرامې او ميډيا نه راواخله تر مذهبي مشرانو، سياستدانانو او ټولو سرکاري او غېرسرکاري ادارو پورې په کار راوستلې کېږي. زمونږ په دې نوي ټولنيز تاريخ کښې په پاکستان کښې د پښتنو د يو قام په توګه منظم سپکاوے د دې يو تازه مثال دے.

# جبرانيات



پهٔ نيمه شپه کښې د مورچو څخه روحونه بهر راوتل، زما د هډوکو يوه ډهانچه پهٔ نظر شوه کښې د زنګونونو پهٔ سر راټيټه شوې وه او سپوږمۍ ته ئې پهٔ زير زير کتل. زهٔ نزدې ورغلم او پوښتنه مې وکړه.

"ستا نوم څهٔ دے؟"

ځواب ئې را کړو،

"ازادي!"

ما بيا وپوښتل،

"ستا زامن چرته دي؟"

د بې وسه او ناتوانه ازادۍ سترګې لهٔ اوښکو ډکې شوې ــ پهٔ رپېدلو شونډو ئې ځواب را کړو،

"يو پهٔ دار وځنګېدو، دويم لېونے شو او دريم لا زېږېدلے نهٔ دے."



کښې کله دېر غمژن شي نو خپل زړهٔ ته دې سر ورښکته کړه. تا ته به معلومه شي کښې تهٔ د هغه څهٔ د پاره ژاړې کښې يو وخت ورته تا د خوشحالۍ نامه ورکړې وه.

خليل جبران

# واک

په دې کښې ستا هېڅ واک نشته چې ستا قيصه څنګه شروع کېږي او څنګه پای ته رسي ـــ خو بايد په دې ته تر اوسه پوهه شوې نې چې د هر څهٔ يوه خاتمه وي. هره سپرغۍ تيارو ته ستنېږي ـــ

هر اواز په خاموشۍ کښې ورک شي ـــ

هر ګل د خاورو په غېږه کښې اوده شي ـــ

سوزي قاسم

## جنت

زما غريب روحه!

ته به هېڅ کله هم په هاغه څه پوهه نهٔ شې چې رښتيا مهم دي. ته به د ژوند د رازونو څخه يو راز هم رابرڅېره نهٔ کړې، سره د دې چې ټول مذهبونه د جنت وعده کوي خو پام کوه چې ته په هم دې دنيا ځان له جنت جوړ کړې.

عمر خيام

# باچا خاني

په مذهب خبرې کول، تقريرونه کول، فضائل بيانول اسان کار دے، هر څوک ئې کولے شي خو په مذهب عمل کول او هغه هم ورومبےد ځان نه شروع کول ډېر ګران کار دے.

باچاخان

# اسره

پهٔ دې لویه صحرا کښې، چې مزل اوږد دے او منزل معلوم نه دے ـــ
بې لهٔ تا څوک دې چې اوچت شوي لاسونه او غوږېدلې خولې وويني؟

# تاوان

زما مشرانو د هندوکش په لمن کښې د ګندهارا تهذيب بنياد ايښے وۀ ــ پوهنتونونه ئې جوړ کړي وو.
چې مسلمان شوم نو د ټولو نه ښۀ او سپېڅلے مسلمان وم خو خپل کلتور او قدرونه مې هم لرل ــ حجره او جومات مې په يوځائے وو ــ جرګه مې لرله ــ په اختر شوقدر مېلې مې کولې ــ
ما د پاره رحمان مينه وه ــ ما د پاره مذهب د انسان قدر وۀ ــ
بيا زۀ ورک شوم.
وطن مې بائيلو، د روزګار وسيلې مې وبائيللې ــ ما هم لکه د اروپا د تور دور خپل تقدير د مُلا په ښنو کښې کېښنود.
نن مې نۀ څوک د مسلمانۍ په نوم پرېږدي، نۀ د وطن په نوم!

# انساني ټولنه

مهذبه ټولنه په علم، انساني عظمت او جمالیاتو ولاړه ده. د داسې ټولنې جوړښت داسې اولسي، سیاسي، اقتصادي او روحاني ادارو ته اړتیا لري چې انسان د وهم، ذهني غلامۍ او مذهبي لېونتوبه خلاص کړي.

# رابندر ناتهـ ټېګور

رابندر ناتهـ ټېګور ته د ادب، موسيقۍ او انځور ګرۍ په مېدان کښې د خپل کار، زيار او فکري عظمت له کبله که يو خوا په نړيوال کچ ډېر د احترام په نظر کتلے کېږي نو بل خوا د فاني ژوند په دومره لږه موده کښې د ټېګور له خوا دومره لوے کار د ادب مينه وال حيران کړي هم دي.

ټېګور په ۱۸۶۱م کښې د هندوستان په کلکته ښار کښې زېږېدلے وو. د اته کالو په عمر کښې ئې په تخليقي ليکونو پېل وکړو او د شپاړسو کالو په عمر کښې ئې د نظمونو داسې يوه مجموعه خپره کړه چې د وخت نقادانو ورته د کلاسيک درجه ورکړه. ټېګور بنګالي ژبې او ادب ته نوې بڼه ورکړه او د جديد نړيوال ادب د غوښتنو سره سم ئې د روايتي بندېزونو نه ازاد کړو. ټېګور د هند کلتور په غربي نړۍ کښې په خلقو وپېژندو او د مغرب نوي فکرونه ئې هندوستاني کلتور او ژبو کښې متعارف کړل.

هغه په سلګونو تخليقي اثار، په لاسو راښکلي انځورونه او د دوو زرو نه ډېر نظمونه پرېښودي دي او د "ويسوا بهارتي" په نوم د يو پوهنتون بنياد ئې هم ايښے دے. هغه ورومبے غېر اروپائي دے چې په ۱۹۱۳م کښې ورته د نوبېل انعام

ور کړے شو.

پۀ هندوستان او بنګال کښې د هغۀ نظمونه د قامي ترانو پۀ توګه غوره کړے شوي دي. د ټيګور ناولونه، قيصې، ډرامې او مضمونونه د سياسي او ذاتي ژوند سره پۀ تړلو موضوعاتو ولاړې دي او د فکر نوې لارې روښانه کوي.

"ګيتانجلي"، "ګورا" او "يوګا يوګ" ئې پېژندلي ادبي اثار دي. ټېګور د هند د ټولو نه ستر شاعر ګڼلے کېږي. پۀ ۱۹۴۱م کښې د اتياو کالو پۀ عمر کښې ئې د نړۍ نه کوچ وکړو.

# کفکا

کفکا(Kafka) د چيک ريپبلک نومورے ليکوال دے. ناولونه او لنډې قيصې ئې ليکلې دي. د هغهٔ کار او زيار ته د درناوي پهٔ توګه شلمې پېړۍ ته د کفکا پېړۍ وائي. د جولائي پهٔ درېمه ۱۸۸۳م پهٔ پراګ کښې زېږيدلے وهٔ. د قانون زده کړې ئې کړې وې. وجوديت، د ځان نه پردے کېدل، نفسياتي جبر او د پلار او "مستيسېزم" (Mysticism) د کفکا د ليکونو بنيادي موضوعات دي.

پهٔ ۱۹۲۴م کښې د ۴۰ کالو پهٔ عمر کښې مړ شو. پهٔ پراګ کښې د هغهٔ پهٔ نوم ميوزيم جوړ کړے شوے. لارې کوڅې د هغهٔ نامې سره منسوب شوي او کلتوري او څېړنيز مرکزونه پرانستے شوي دي او د کفکا د نوم ياد کاري څيزونه پهٔ کښې خرڅېږي.

## ډېر روحونه

مونږ داسې خلق یو چې په وجود ځرمنې غټې لرو خو روحونه مو ډېر دي. مونږ خپلې ورځې په لوبو او ټوقو ټقالو کښې تېروو او بیا اوده پراته یو او مونږ بیا هم وایو چې مونږ د نړۍ په انسانانو کښې د ټولو نه ښه خلق یو...

نظار قباني

# زړګیه داغ به درله درکړم!

دولسم اګست نورلس سوه اته شلویښتم ــ د چارسدې بابړه ــ په زرګونو خدائي خدمتګار او د خپلو بې ګناه ملګرو د نیولو پر ضد احتجاج ــ نه توپک، نه توره ــ د ازادۍ لټون ــ او د ظالم په مخکښې د حق د اواز اوچتول ــ
خو حق چا منلو؟ حق څوک مني؟
د هاغه وخت وزیراعلیٰ قیوم خان کشمیرے فکر کوي چې د خپل بادار سره د وفادارۍ ښودلو د دې نه ښه موقعه بله څه کیدې شي؟ امنیتي ځواکونو ته حکم ورکوي ــ د اور باران راشکې کېږي ــ یو پرېوځي، بل پرېوځي ــ یوه نیمه ګېنټه تېرېږي او د بابړې په خاوره د وینو څادر خورېږي ــ
څوک وائي دوه سوه مړه شو ــ څوک وائي شلور سوه مړه شو ــ څوک وائي شپږ سوه مړه شو ــ خو د هشنغر هره کوڅه ژاړي، هر یو کالے بوټے او ښکې تویوي، هر کور د غم کور دے ــ هر مېدان ئې د کربلا مېدان دے.
د بابړې په مېدان کښې چې د زورور توپک اوچت شوے دے، بیا راښکته شوے نه دے ــ د پښتنو په خاوره هره ورځ د بابړې یادونه تازه کوي ــ
افغان جهاد په ملینونو ځوانان وخوړل. وزیرستان، سوات، باجوړ، خیبر، پېښور، کوئټه او مردان د بابړې د پېښې نوي نوي شکلونه دي ــ نوي منظرونه دي ــ خو دښمن هم هغه پخوانے دے ــ توپک هم هغه پخوانے دے ــ
کله په ځرګند مخ راشي، کله په پټ مخ راشي ــ کله یو رنګ واخلي او کله بل رنګ خو په ګولیو غلبېل سینه هم هاغه ده، وینه هم هاغه ده، سره او

مقدسه وينه!

خو پهٔ دې اتهٔ شپېتهٔ کاله کښې نهٔ چا د بابړې ذکر وکړو، نهٔ ئې د هاغه شهيدانو پهٔ قبرونو څراغونه بل کړل، نهٔ ئې د هغوي د کورنيو تپوس پوښتنه وکړه، نهٔ ئې ځوان کهول ته د هغوي د وينې تقدس وښودلو. نهٔ پهٔ کتاب شته، نهٔ پهٔ نصاب کښې شته، نهٔ ئې يادګار شته.

آيا دا خلق نهٔ وو؟ انسانان نهٔ وو؟ ارمانونه ئې نهٔ لرل؟ خوبونه ئې نهٔ لرل؟

د خزان وهلو اونو پاڼې وې؟ طوفان پرې راغلو، تېرې شوې او هېرې شوې؟

ما دا فکرونه ليونے کړي. د لوئې پښتونخوا پهٔ لارو کوڅو، غرونو او ورشوګانو وګرځم. د بابړې او ټکر د شهيدانو پهٔ قبرونو راتېر شم. د ورانو شوو کودرونو او ړنګو شوو کورونو کنډرونو ته وګورم.

هر لور ته تيارهٔ ده، بې وسي ده او د بارودو لوګي دي ـــ څو اوښکې توې کړم او بيا خپل زړګي ته سر ورښکته کړم ـــ يو غلام نور څهٔ کولے شي؟

زړګيه! داغ به درله در کړم

کهٔ دې ننګه يار دې بيا محتاجه کړمه

# پښتانهٔ او د قامونو جېل خانه

پنځوس مليونه پښتانهٔ پنځوس ډلې دي ــــ
ژبه يوه، تاريخ يو، مزل يو، ارمان يو خو قام يو نهٔ دے، مرام يو نهٔ دے ــــ پهٔ ماتو لښکرو نهٔ وطن ګټلے کېږي او نهٔ قام.
لهٔ پير روښانه تر باچاخانه پهٔ دې قام کښې رهبران ډېر، لارښودان ډېر، قربانيان ډېر، شهيدان ډېر ــــ بيا هم نهٔ فکر يو شو او نهٔ اواز.
کوټه څهٔ؟ کندهار څهٔ؟ پېښور څهٔ؟ نوښار څهٔ؟ ــــ ټوله يوه خاوره، يو وطن، يوه زمکه ــــ خو نهٔ کوټه پېښور ته غاړه وته او نهٔ کندهار نوښار ته ــــ اوښکې مو يو، غم مو يو خو ساندې مو بېلې بېلې دي.
دلته کله څوک د مذهب پهٔ نوم راشي، کله د انصاف او بدلون پهٔ نوم راشي ــــ خو ټې وخت راشي، نهٔ مو څوک مسلماني مني او نهٔ د انصاف غوښتنې.
پهٔ دې خاوره هر چا ته ملګري ترلاسه شي، د هر سياسي ګوند کابينې جوړې شي، هر يو سياسي مشر ټې پهٔ بله کومه صوبه کښې ملګرے پيدا نهٔ کړي، پهٔ پېښور او کوټه کښې ئې پېدا کولے شي. کهٔ نشته نو خپله سياسي کرتلاره نشته، د خپلو رارونو نسلونو غم نشته.
تاريخ خو دا وائي ټې حق پهٔ سياست ګټلے کېږي، پهٔ قامي مبارزه ګټلے کېږي، پهٔ سياسي شعور او پوهه ګټلے کېږي خو اَيا دلته د قام او خاورې سياست ګناه نهٔ ده؟ کهٔ نهٔ ده نو ټول هغه خلق ولې پهٔ نخښنه کېږي ټې د خپلې خاورې اوقام لپاره اواز اوچتوي؟

پهٔ کوټه کښې پهٔ علم، پوهه او سیاسي شعور برید شوے دے ــــ د ریاستونو د ستراتیژیکي کتو لپاره ، د قامي غورځنګونو د کمزوري کولو لپاره پهٔ هغه ځوانانو برید شوے دے چې خپل حق ئې هم پېژندهٔ او هغه قوتونه ئې هم پېژندل چا چې لهٔ حقونو ې بر خې کړي وو.

پهٔ پشین، ژوب، مسلم باغ، قلعه سیف الله، نوشکي او کوټه کښې به د دغه شهیدانو پهٔ قبرونو د وینو چراغونه بلېږي او هلته به د مارګلې پهٔ لمن کښې د وطن د ازادۍ جشن پېل شي.

د قامونو پهٔ دې جېل خانه کښې زما بس دومره ځاے دے ــــ

بس دومره قیمت مې دے!

اندېښ شمس القمر وائي،

تهٔ به د زړهٔ پهٔ جهان لوټې کوې

او هنګامه او انقلاب به نهٔ وي؟

اګست ۸ ، ۲۰۱۶ء

# زهٔ په ګناه او ثواب څهٔ پوهېږم؟

ما وئیل، شکر دے خلق د مذهب سره مینه لري، پهٔ هره لار کوڅه کښې مدرسې جوړې شوې دي ـــ د ښځو جدا ، د سړو جدا ـــ چندې راټولېږي، سبقونه وئیلے کېږي.

ښه خبره ده!

ملنګ وروميے خپل چیلم کش کړو، د تما کو لوګو ئې پهٔ مخ او ږیره کښې لاړې جوړې کړې، بیا موسکے شو، وئیل ئې،

بونبریه! خبره د مذهب نهٔ ده، د خدائے د رضا کولو نهٔ ده، خبره د روحانیت نهٔ ده ـــ خبره د سیاست ده، خبره د جنګي اقتصاد ده، خبره د انسان نه د انسان د نفرت ده.

ملنګهٔ دا زهٔ څهٔ وایم او دا ته څهٔ وائې؟، ما ورنه پهٔ حېرانتیا پوښتنه وکړه.

د ملنګ د مخ پهٔ کرښو کښې د تاریخ د ټولو دورونو قیصو غزونې وکړې، وئیل ئې،

ګورهٔ زهٔ خو د پېړیو راهسې مسلمان یم او داسې مسلمان یم چې د خپلې مذهبي عقیدې لپاره مې تل قربانۍ ورکړې دي، کورکلي مې وران شوي دي، پهٔ دغه دربار کښې خو ما تل د خپلو وینو څراغونه بل کړي دي ـــ زما مسئله خو دا ده چې پهٔ خپله خاوره د سرو او سپینو پهٔ خزانو ناست یم خو د ټوک ډوډۍ لپاره مرم ـــ بچي له سکول نهٔ لرم، د روغتیا مرکز نهٔ لرم، هیله نهٔ لرم، خوب نهٔ لرم ـــ مودې وشوې کېږه پهٔ سر یم!

ما وئيل، ملنګه! منم دې خو خبره دې ډېره اوږده کړه.

وئيل ئې، لنډه دا ده چې په نړۍ کښې نور قامونه په عزت، خپلواکۍ او خوشحالۍ خپل ژوند تېروـلے شي نو زۀ ئې ولې نۀ شم تېروـلے؟

ملنګ چيلم ته نور تماکو واچول، سکروټه له ئې پوکے ورکړو او يو اوږد کش ئې واخستو. خاموشي خوره شوه.

ما وئيل، دا خو ډېر سياسي سوال دے؟

او هغۀ بس هم دومره ووئيل چې،

هم دغه اصلي سوال دے!

ما لا خولۀ پرانسته چې ملنګ راولاړ شو. ما وئيل ملنګه! زما خبره نيمګړې ده! وئيل ئې، خبرې لا کله پوره شوې دي؟

د خپلې کوډلې په لور روان شو او په روانه روانه کښې ئې ووئيل،

زۀ يو پښتون خانه بدوش د وطن
کله په سر او در په در ګرځـمه
زۀ په ګناه او ثواب څۀ پوهېږم
په جنتي خاوره نهـر ګرځـمه

# ژوندے وياړ

کابل، هشنغر، کوئټه، کندهار او پېښور دا ټول ښارونه، دا ټوله خاوره او دا ټول وطن د علم او تهذيب کور وهٔ ـــ دا د هنر کور وهٔ ـــ دا د امن کور وهٔ ـــ

کندهارا، پشکلاواتي، اُدهيانه د دې ښېرازه وطن د بېلابېلو تهذيبي جوړښتونو نومونه دي. پهٔ دې خاوره غوبل کول، دهشت کول، پوهنتونونه ورانول د اوس نه نهٔ دي ـــ دا کار 'وائټ هُنز' او چنګيزيانو هم کړے وهٔ. دا خلق مقدس ځکه دي چې دوي پهٔ خپلو وينو د علم او شعور مشالونه بل ساتلي دي. د دې دومره يرغلونو باوجود نن هم ژوندي دي. ټوک ټوک دي، بيا هم خوبونه ويني او خپلې هيلې تاندې او تپاندې ساتي.

تهٔ ازغي کره زما او د ګل مينځ کښې
زهٔ پهٔ لاره قدم نهٔ ږدمه، سينه ږدم

# د ازادۍ ورځ!

په څوارلسم اګست به مو ځان سمبال کړو، د کاغذ نه جوړې د پاکستان د بېرغ ټوپۍ به مو په سر کړې، په سینه به مو د "اتحاد، تنظیم، یقینِ محکم" بېجونه ولګول او بیا به مو د کلي د پرائمري سکول مخه وکړه. ترانې به ووئیلې شوې، تقریرونه به وشو، ازادي به ونمانځلې شوه!

خو چې را لوئېدم نو قدم په قدم را ته د خپلې غلامۍ احساس شوے دے. زما په کلي کښې اوس هم ماشومان د داسې بیمارو نه مري چې علاج ئې په اسانه کېدے شي. اوس هم هلته داسې مېندې مرګ ته ورځي چې شمارې چې بچي ئې په بې چاودنو کښې وژلے شوي دي. اوس هم هلته غریبي او بې روزګاري ده.

د کلي هغه پرائمري سکول چې د ښکلو اوبه ئې نه لرلې، ټاټونه ئې شلېدلي وو، په دېوال تور بورډ ئې برګ شوے او رېژېدلے ؤ. خو بیا هم پکښې د ازادۍ ترانې په څوارلسم اګست وئیلې کېدې ـــ اوس هغه سکول کښې په ټاټ ناست ډېر هلکان په بې چاودنو کښې وژلے شوي دي ـــ هغه سکول هم نیم په بم رنګ کړے شوے دے، خو سکول ته مخامخ چاونۍ محفوظه ده. د ازادۍ جنډه پرې هر وخت رپېږي او هر غلام یو بل ته د ازادۍ د جشن په مبارکۍ مجبوره دے.

# هغه او د خمار مېخانه

هغه د اروپا تنهايي او ځان ځانۍ خوړلې وه او زهٔ د خپل وطن شور— هغې د مینې په لاره کښې ولاړ هر روایت عبث ګڼلو، بې منطقه او بې دلیله ئې منلو— او زهٔ د خپلو روایتونو د ګردش نه نهٔ شوم وتلے.

هغه د خمار په مېخانه کښې پیمانه په لاس ولاړه وه او زما مخې ته د خپلې خاورې مخونه لکه د دېوالونو ولاړ وو.

دواړه په یو اسمان کښې پر قېدو، لکه دوه بېل بېل جهانونه—

# سفر مدام سفر

هغه د چا خبره، پخوا په زمانه کښې به انسانان ټوله ورځ په ځنګلونو، شاړو او مېرو کښې د ښکار پسې په ځغل وو. یا خو به په خپله ښکار شو خو که ژوندي به پاتې شو نو د نمر دوبېدو سره به ئې ځان خپلو خپلو غارونو ته رسولو ...
یو بل ته به ئې د ورځې قیصه وکړه ـــ بیا به ئې د شپې تور څادر واغوست او اوده به شول.
اوس هم هر سړے هر سحر په خپل خپل کار پسې وځي ـــ په ښکار پسې وځي ـــ د خپل خپل خوب په تعبیر پسې وګرځي او چې ماښام شي نو په دې تکل کښې وي چې زر خپل کور ته ورسي.
ما په دې ښار کښې داسې خلق هم لیدلي دي چې د پُلونو د لاندې اوده کیږي، په پارکونو کښې په بنچونو اوده کیږي ـــ دغه د هغوي کورونه دي.
خو قیصه بیا هم هغه ده ـــ بنګلې واله هم د کور او بهر د ګردش نه نه شي وتلے او جونګړې واله هم.
دا سفر چې زرګونه کاله مخکښې پېل شوے وۀ، اوس هم دوام لري ـــ دا جلا خبره ده چې اوس د ډېرو خلقو کورونه د خاورو لاندې دي.

څوک یو دوه قدمه واخلي، تر تا در شي
د چا پښې په مزل ستړې شي، ناکام شي

# 'پښتونخوا' وطن،

# 'ترابان' دېو او 'گل اندامه' ښاپيرۍ

د آمو نه تر اباسين دا ټوله خاوره ــــ دا ټول غرونه، سيندونه، ورشوگانې او کودرونه ــــ لهٔ امير کروړه تر باچاخانه د خپلواکۍ ټول اوازونه ــــ د مېوند د ملالۍ نه تر سوات د ملالۍ د قربانۍ او ننگ ټول داستانونه ــــ د ۵۰ مليونه نه د ډېرو خلقو پهٔ زړونو کښې راولاړ شوي ټول دردونه ــــ ټول ارمانونه ــــ دا هر څهٔ چې راټول شي، د زمکې يوه ټوټه ترې جوړه شي ــــ د احساس يوه نغمه ترې جوړه شي ــــ يوه استعاره ترې جوړه شي ــــ او چې بيا دا هر څهٔ يو بل ته ورتر غاړه وځي نو پښتونخوا وطن ترې جوړ شي.

دا وطن ښائسته دے، موړ دے، غني دے او خلق ئې خپلې سادگۍ او اخلاص خوړلي دي ــــ پهٔ دې خاوره کله د چنگېز خان پوځونه يرغل وکړي او کله د گل خان ــــ کله د اخوندانو او پيرانو پهٔ شکل کښې زبرگان راشي او خلق د وهمونو تيارو ته واچوي ــــ کله کماندانان او جرنيلان راشي او د وينو سېلابونه توي کړي ــــ ددې خاورې د خلقو فکرونه ئې لارې او خوبونه شوربدلي دي ــــ دا خلق پهٔ خپلو چړو لگېدلي دي ــــ دوي وخت پهٔ وخت ځان له خپله قبرونه کنستي دي.

کله چې د مينځنۍ ايشيا نه واٹې هُنز پهٔ دې خاوره قابض شول نو دهغوي يو باچا وهٔ چې د 'ترامانه' پهٔ نوم پېژندلے کېدهٔ ــــ هغهٔ دلته د بدهايانو د عبادت ځايونه، پوهنتونونه، يادگارونه او د جرگو مرکو ځايونه او کلي کورونه وران کړل، د خاورو سره ئې خاورې کړل ــــ دومره ظلم ئې وکړو چې بيا د دې سيمې خلقو د 'ترابان دېو' پهٔ نوم پېژندو ــــ دغه ديو ترابان د دوي د فوکلوري تاريخ،

د دوي د نفسياتو او د دوي د قيصو او داستانونو يو مهم کردار وګرځيدهٔ.

پېړۍ تېرې شوې، زمانې واوړېدې خو د دې خاورې اولس د دپوترابان د پنجو نه ازاد نهٔ شو ـــ کو چې وخت پهٔ وخت د دغه دپو د سرچقولو لپاره د بهرام غوندې ځوانان او ننګيالي هم زېږېدلي دي خو دغه دپو سل سرونه کړي دي ـــ کله د چنګېز خان پهٔ شکل کښې راڅرګند شي او د انسانانو د سرونو نه منارې جوړې کړي ـــ کله شېرعالم شي او د شک پهٔ چارهٔ د مېموني مرۍ پرې کړي ـــ کله اخوند او پير شي او د وهمونو جال خور کړي ـــ کله طالب او مُلا شي ـــ کورونه وران کړي، بازارونه وران کړي، کلونه خاورې کړي، خوبونه خاورې کړي او بيا ئې ښه پهٔ ډاګه ومني چې دا هر څهٔ ما کړي دي، ټوره مو تېرهٔ او لاس مو خلاص.

دې دپو د دې خاورې د هر ماشوم او هرې کل اندامې د تن وينې وڅښلې ـــ دا دپو پهٔ زړونو کښې اوسېږي او پهٔ مزغو کښې توپونه وهي ـــ دا دپو د بې اتفاق، جمود او ناپوهۍ دے ـــ دا دپو به هله مري، کله چې پهٔ تيارو تيارهٔ مازغهٔ روښانه شي ـــ کله چې د دې خاورې بچي د پوهې او شعور پهٔ کالو ښائسته شي ـــ کله چې د شېرعالم لاس مات شي او مېموني ته د خپلې خبرې حق تر لاسه شي ـــ کله چې د عبادت ځايونه د تنګ نظرۍ او تعصب پهٔ ځائے د علم او مينې مرکزونه شي ـــ کله چې د مرګ د عظمت پهٔ ځائے د ژوند د عظمت خبره وشي ـــ او دا څهٔ اسان کار نهٔ دے، د دې لپاره به د وطن هر بهرام کار ته ملا تړي ـــ خپلې اوښکې به وچوي او د خپلو اکې د کل اندامې د سرې ډولۍ لپاره به د مينې بېرغ پهٔ لاس د ترابان کرېوان ته لاس اچوي!

اوښکې مانځي دي کهٔ بېلمازه
زما پهٔ څيرې کرېوان ځي نمونځ پرې کومه

# د محبت څلوېښت اصول

"د محبت څلوېښت اصول"(The Forty Rules of Love) د ترکي د نوموړې ناول لیکونکې "الیف شفق" یو داسې ناول دے چې دوه قیصې پکښې په ډېره استاذۍ او هنر را یوځاے کړے شوې دي.

یوه قیصه د امریکې په "نارتمپټن"(Northampton) ښار کښې د "ایله"(Ella) په نوم د یوې داسې ښځې ده چې د خپل خاوند او بچو سره ژوند کوي. په ظاهره دا کورنۍ ډېره خوشحاله ښکاري خو دننه د کورنۍ ټول غړي او په خاص توګه ایله په خپله د ډېرې بېقرارۍ سره مخ ده. ایله د کور ټول کارونه کوي، د هغې بچي د ځوانۍ دور ته داخلېږي او خاوند ئې د هغې نه علاوه د نورو ښځو سره هم اړیکې لري. ایله په دې سوچ مجبوره کېږي چې هغه کوم ژوند تېروي، آیا دا په رښتیا یو خوشحاله ژوند دے؟ آیا هغه په رښتیا د خپل خاوند سره مینه لري؟ آیا د هغې د ژوند مرام هم دغه دے چې دا هر څه په خاموشۍ وزغمي او د ژوند د کاروان سره د معمول مطابق لاړه شي؟ هغهٔ د خپلې بېقرارۍ ختمولو لپاره د کتابونو د چاپولو او خپرولو د یوې ادارې سره د لیکوالانو مسودو ته د کتنې کار پیل کړي. یوه ورځ د هغې پبلشر هغې ته د لوستلو او کره کتنې لپاره د "Sweet Blasphemy" په نوم د یو کتاب مسوده راولېږي. هم د دغې کتاب د لارې دا د تصوف سره بلدېږي، د ژوند لارې ئې بدلېږي او د لیکوال په اړه ئې په زړهٔ کښې تجسس او مینه راولاړېږي.

دوېمه قیصه د دیارلسمې صدۍ عیسوۍ د نوموړو صوفیانو او درویشانو مولانا جلال الدین رومي او شمس تبرېزي ترمینځ د روحاني ترون او د خداے،

انسان او کائنات په اړه د هغوي په بحثونو ادانه لري. اګرچې مولانا رومي د اسلامي روايتي علومو لوے پوهان وهٔ خو د شمس تبرېزي سره د ملاقات نه وروستو هغه د زړهٔ او روح په دنيا کښې ورکېږي او د محبت د عالمګريت او انسانيت د تقدس په اړه د نوو نوو خبرو او حقيقتونو نه خبرېږي.

دا دواړه قيصې په يو بل کښې ورننوتې دي. ايله د ريښتينې مينې لټون کوي او مولانا رومي د ملګرتيا د لارې د روحاني خوشحاليو او کائناتي رښتياو په تکل کښې د يو نوي مزل پېل کوي. هم د دغې نه د رومي د تصوف د سلسلې بنياد پرېوځي چې څرګندونه ئې په شاعري، موسيقۍ او نڅا کښې کېږي.

شمس ملنګ دے، درویش دے او لهٔ ځانه د جهانه ناخبره په خپله مينه مست د يو ځاے نه بل ځاے ته سفرونه کوي. هم په دغه شان يو سفر کښې د ترکي قونيا ښار ته راځي او د مولانا رومي سره ئې ليدهٔ کاتهٔ کېږي.

دا کتاب چې ما ولوستو نو ډېر خوند ئې را کړو، ډېره رڼا ئې را کړه. ما غوښتل چې ټول کتاب په پښتو کښې ترجمه کړم خو ولې د وخت د نيشتوالي او خپلې ناراستۍ لهٔ کبله مې دغه کار ونهٔ کړے شو. البته دومره مې وکړے شول چې شمس تبرېزي د خداے، د کائنات او انسان او د دوي ترمينځ د تړون په اړه مولانا رومي ته کوم څلوېښت اصول يا قاعدې ښودلې وې، هغه مې ترجمه کړې او دغه دي ستاسو په خدمت کښې ئې وړاندې کوم. هيله لرم چې مينه به مو پرې ماته شي۔

پښتانهٔ هم وائي چې:

دکلي شپېږ پنځوس کوڅې دي
زهٔ د جانان ديدن ته کوم ځاے ودرېږمه؟

۱. مونږ چې ځان ته څنګه ګورو هم هغهٔ شان خپل خدا ے ته ګورو. کهٔ چرې د خدا ے د نوم سره زمونږ ذهن ته وېره راځي نو د دې معنا دا ده چې پهٔ مونږ کښې دننه وېره ده. کهٔ چرې مونږ خدا ے مينه او شفقت ګڼو نو مونږ هم دغسې يو.

۲. رښتيا ته د رسېدو لاره پهٔ سر کښې نهٔ بلکې پهٔ زړهٔ چاودون کښې ده. خپل زړهٔ خپل لومړ ے لارښود جوړ کړه! د خپل نفس سره ووينه، ننګونه ورکړه او د خپل زړهٔ د لارې ئې پهٔ قابو کښې راوله. کهٔ چرې تاً خپل ځان وپېژندو نو خدا ے به هم وپېژنې.

۳. خدا ے تر جومات، کلېسا يا بلې کومې عبادت خانې محدود نهٔ د ے. تهٔ خدا ے د کائنات پهٔ هر څهٔ کښې ليد ے شې، پهٔ هر چا کښې ئې ليد ے شې خو کهٔ چرې ته د خدا ے کور پسې ګرځې نو د هغهٔ کور د رينښتيني مئين پهٔ زړهٔ کښې د ے.

۴. مينه او عقل د دوو جدا جدا موادو نه جوړ د ے. عقل خلق پهٔ ګنډو کښې وتړي او د تاوان نه ئې خوندي ساتي خو مينه ټولې غوټې (ګنډې) پرانيزي او د هېڅ تاوان نه نهٔ وېرېږي. عقل تل محتاط وي او دېرې مسئ ته دې نهٔ پرېږدي خو مينه وائي هېڅ غم مهٔ کوه! ور ودانګه! عقل پهٔ اسانه نهٔ ماتېږي او مينه پهٔ يوه شېبه کښې ځان کنډ کړر کړي خو خزانې تل پهٔ کنډوالو کښې پټې وي. رنګ شوي زړونه پهٔ ځان کښې خزانې لري.

۵. د نړۍ دېرې ستونزې د ژبې د غلطيو او وړو وړو بدګمانيو نه راولاړې شوې دي. هېڅ کله هم ټکي توري (لفظونه) پهٔ ظاهري معنو کښې مهٔ اخله. د مينې پهٔ جهان کښې ژبه بې معنې او بې کاره پاتې شي. کومه خبره

چې په لفظونو کښې نهٔ وئيلې کېږي، په هغې پوهېدل خاموشي غواړي.

٦. يواځې والے (تنهائي) او خلوت دوه جلا جلا څيزونه دي. کله چې ته يواځې يې نو ډېر په اسانه ځان غولولے شې چې گنې ته په سمه لار يې. مونږ له خلوت ښهٔ دے، په خلوت کښې يواځېوالے نهٔ احساسېږي. ښه دا ده چې ته داسې څوک پيدا کړې چې ستا هينداره وي. دا خبره ياده لره چې ته په رښتيا خپل ځان او خدائے د بل چا په زړهٔ کښې ليدے شې.

٧. تا سره چې په ژوند کښې هر څهٔ کېږي او دا کهٔ ستا لپاره هر څومره دردوونکے وي خو هېڅ کله هم د مايوسۍ کاونډ ته مهٔ ورننوځه. کهٔ چرې ټولې دروازې وترلې شي نو خدائے به بيا هم تا له يوه دروازه پرانيزي. شکر وباسه! يو صوفي يواځې په هر هغه څهٔ شکرنهٔ وباسي چې وربخښلے شوے وي بلکې په هغه څهٔ هم شکرگزار وي لهٔ کومو چې بې برخې ساتلے شوے وي.

٨. د صبر معنا په کوزو سترګو زغمل نهٔ دي، سلامي کېدل نهٔ دي. د دې معنا دا ده چې د يو عمل اخري نتيجې ته پام وشي. د دې معنا دا ده چې ته ازغي ته گورې او گل وينې، شپې ته وگورې او د سحر تماشه وکړې. بې صبري دا ده چې ستا نظرتر دومره لګي چې د يو عمل انجام درته په نظر نهٔ راځي. د خدائے مئينان کله هم نهٔ بې صبره کېږي ځکه چې هغوي خبر دي چې د سپوږمۍ په پوره کېدو کښې وخت لګي.

٩. مشرق، مغرب، جنوب، شمال ډېر لږ فرق لري. ستا منزل چې هر څهٔ دے خو دا خبره يقيني کړه چې بايد ستا هر مزل ستا دننه هم يو مزل وي. کهٔ چرې ته په خپل ذات دننه مزل کولے شې نو ته به د ټول

جهان او د جهان نه بهر هم مزل وکړے شي.

۱۰. خدمتګارې ته معلومه وي چې کهٔ چرې درد نهٔ وي نو د نوي زېږېدونکي ماشوم لپاره لاره نهٔ شي پرانستلے کېدې او ښځه مور نهٔ شي جوړېدې. هم دغه شان د يو نوي ځان د زېږېدو لپاره سختۍ او زړهٔ چاودون مهم دي. څنګه چې خټه د اور د لمبو نه تېره شي نو مضبوطه شي، هم دغه شان د مينې تکميل هم پهٔ درد کښې کېږي.

۱۱. د مينې لټون پهٔ مونږ کښې بدلون راولي. پهٔ عاشقانو کښې داسې څوک نشته چې د خپل لټون پهٔ لاره کښې هوښيار شوے نهٔ وي. هم هاغه شېبه ستا دننه او بهر بدل شي کله چې تهٔ د مينې پهٔ لاره وړومبے ګام واخلې.

۱۲. پهٔ دنيا کښې کهٔ جعلي لارښودان او استاذان د اسمان د ستورو نه هم ډېر دي، هاغه خلق ستا لارښودان نهٔ شي کېدے چې پهٔ ځان کښې ورک وي او واک غواړي. يو سپېڅلے روحاني مشر ستا نه بې تپوسه تابعداري نهٔ غواړي او نهٔ دا وائي چې تهٔ خپله ټوله توجه هم هغهٔ ته ورواړوه. ريښتينے لارښود ستا سره مرسته کوي چې تهٔ خپل ځان وپېژنې او د ځان ستائينه وکړې. ريښتينے لارښود د شفافې شيشې پهٔ شان وي چې خدائي رڼا ترې تېرېږي.

۱۳. ستا پهٔ لاره کښې چې کوم بدلونونه راځي نو د هغې د مخې نيولو هڅه مهٔ کوه. پرېږده چې ژوند ستا پهٔ وسيله مخې ته لاړ شي. دا فکر مهٔ کوه چې ستا ژوند به ګډ وډ شي. تا ته څهٔ معلومه ده چې څهٔ ته ښهٔ کښې هغهٔ پهٔ راتلونکي وخت کښې ستا پهٔ لاس د راتلونکو څيزونو نه ښهٔ وي؟

۱۴. خدائے ستا د وجود دننه او بهر دواړو د تکميل پهٔ کار کښې بوخت

دے. هغه هر وخت هم ستا غم خوار دے. هر یو انسان رو رو د خپل تکمیل په لور مزل کوي. مونږ ټول د فن نیمګړي نمونې یو. د خپل تکمیل په انتظار کښې یو او هم د دغې لپاره زیار باسو.

۱۵. خدائے مکمل دے، پوره دے، پاک دے او تل پاتې دے. د خدائے سره مینه اسانه ده. ګرانه خبره دا ده چې د انسان سره، سره د هغهٔ د کمزوریو او نیمګړتیاو مینه وشي. دا خبره یاده لره چې انسان د هر هغهٔ څهٔ سره مینه کوي چې د مینې څهٔ قابلیت لري. بې لهٔ مینې پوهه او هوښیارتیا نشته. تر څو چې مونږ د خدائے د مخلوق سره مینه نهٔ وي کړې، تر هغې مونږ نهٔ د خدائے سره مینه کولې شو او نهٔ ئې پهٔ رښتیا پېژندے شو.

۱۶. اصلي ګند هغه دے کوم چې دننه دے. د دغه ګند نه بغیر نور هر څهٔ وینځل کېدے شي. یو ګند داسې دے چې اوبهٔ ئې هم نهٔ شي پاکولے او دغه ګند د نفرت او تنګ نظرۍ ګند دے. نفرت او تعصب د ځان سره روح هم خیرن خچن کړي. کهٔ چرې تهٔ پرهېز وکړې نو خپل وجود پاک ساتلے شې خو د زړهٔ پاکوالي له مینه پکار ده.

۱۷. دا ټول کائنات پهٔ یو انسان کښې راټول دے او هغه انسان تهٔ ئې. تهٔ چې کېر چاپېره هر څهٔ وینې، هر هاغه څهٔ چې ستا خوښ دي، هر هاغه څهٔ چې تهٔ ترې نفرت کوې، تر دې چې هر هاغه څوک چې ستا نهٔ خوښېږي ـ دا هر څهٔ پهٔ څهٔ نه څهٔ درجه کښې ستا دننه دي. لهٔ دې کبله پهٔ شیطان پسې د ځان نه بهر مهٔ ګرځه. شیطان څهٔ غیر معمولي قوت نهٔ دے چې پهٔ تا لهٔ بهره برید کوي. دا د معمول یو قوت دے چې پهٔ تا کښې دننه دے. دا د دننه څخه د معمول یو اواز دے.

۱۸. کۀ چرې تۀ غوارې چې هر هاغه څۀ بدل کړې چې د خلقو لۀ خوا ستا سره کېږي نو وړومبے ځان بدل کړه. تۀ چې د ځان سره څنګه سلوک کوې، هم هاغه رنګ سلوک به درسره د خلقو لۀ خوا کېږي. ترکومه چې دې د ځان سره پۀ ايمانداری مينه نۀ وي کړې، بل څوک ئې درسره هم نۀ شي کولې. تۀ چې دغه ځائے ته ځان رسوې نو کېدے شي پۀ لاره کښې پۀ ازغو هم ځوړ شې. بيا هم شکر وباسه، ځکه چې دا د دې خبرې نخښه ده چې پۀ تا به د ګلونو باران کېږي.

۱۹. دا غم مۀ کوه چې دا لار به تا کوم ځائے ته ورسوي؟ د دغې پۀ ځائے پۀ خپل وړومبي کام توجه ورکړه. دا تر ټولو ستونزمن کار دے او د دغې ټوله ذمه واري پۀ تا ده. کله چې تۀ وړومبے کام واخلې نو بيا پرېږده چې ټول هر څۀ پۀ خپله فطري لاره مخکښې لاړ شي. د چپې سره مۀ ځه، پۀ خپله يوه چپه شه.

۲۰. مونږ ټول خدائے پۀ خپل شکل کښې جوړ کړي يو. بيا هم مونږ ټول د يو بل نه جدا او ځانګړي يو. دوه کسان يو شان نۀ شي کېدے. هر يو زړۀ پۀ خپل "ردهم" (انداز) کښې درزېږي. کۀ چرې خدائے غوښتلے چې ټول خلق دې يو شان وي نو هغۀ به هم دغه شان کړي وو. پۀ دې وجه د رنګارنګۍ او ځانګړتوب سپکاوے کول او پۀ خلقو خپله رائې پۀ زور منل د خدائے د مقدس نظام سپکاوے دے.

۲۱. کله چې د خدائے رېښتينے مئين مېخانې ته لاړ شي نو مېخانه د هغۀ د عبادت ځائے شي خو د شرابي لپاره هم هغه ځائے شراب خانه وي. مونږ چې هر څۀ کوو، نو دا زمونږ ظاهري جوسه نۀ بلکه زړۀ وي چې د يو څيز معنا د بل نه بدله کړي. صوفيان پۀ دې د خلقو جاج نۀ اخلي

چې هغه په ظاهره څنګه ښکاري. کله چې يو صوفي چا ته ګوري نو خپلې دواړه سترګې پټې کړي او د دغې په ځاے يوه درېمه سترګه پرانيزي، کومه چې د دۀ دننه جهانونه ليدلے شي.

۲۲. ژوند يو عارضي پور دے، قرض دے. دا دنيا د حقيقت د يو کمزوري نقل نه بغېر نور هيڅ هم نۀ دۀ. د لوبو په کوډاګو خو ماشومان غلطېدے شي خو عام انسانان هم د لوبو په څيز يا دهوکه وخوري او يا ئې په ډېر سپکاوي توتې توتې کړي او يو اړخ ته ئې وغورځوي. په دې ژوند کښې د هر رنګ سخت درېزئ نه ځان وساته، ځکه چې دا به ستا دننه موجود توازن خراب کړي.

۲۳. انسان ته د خداے په تخليق کښې يو ډېر ځانګړے مقام حاصل دے. مونږ ټول پې لۀ څۀ تفريقه د خداے نائبين يو. ياد ساته چې زمونږ د ټولو ذمه واري دا دۀ چې په ځان دننه موجود د خدائي روح لټون وکړو، پېدا ئې کړو او بيا ټول ژوند هم د دغې په احترام کښې تېر کړو.

۲۴. دوزخ اوس او هم دلته موجود دے. د جنت خوبونه او د دوزخ غمونه پرېږدۀ، ځکه چې دا دواړه هم دا شېبه زمونږ دننه دي. هر ځل چې مونږ مينه کوو، مونږ جنت ته ورخېژو ـــ هر کله چې مونږ نفرت کوو يا جګړې کوو نو هم هغه وخت مونږ د دوزخ لمبو ته پرېوځو.

۲۵. هر لوستونکے په قران پاک د خپل فهم او پوهې مطابق پوهېږي. د پوهې څلور درجې دي ـــ ورومبۍ ظاهري معنا چې اکثريت خلقو ورباندې ځان قانع کړے دے. دوېم باطن، درېم په باطن کښې باطن او څلورمه معنا ئې دومره ژوره دۀ چې په لفظونو کښې ئې اظهار نۀ

کېږي او د بیان نه بهر ده.

۲۶. ټول کائنات یو وجود دے. هر څوک او هر یو څیز د یو بل سره د داسې قیصو د جال په وسیله تړلے دے چې په نظر نۀ راځي. کۀ مونږ ترې خبر یو او کۀ نۀ، خو مونږ ټول د یو بل سره د خاموشۍ په ژبه خبرې کوو. څوک مۀ زخمي کوه! د شفقت نه کار واخله او په چا پسې پشې شا توقې مۀ کوه ـــ عن چې د یوې معصومې تبصرې نه هم ډډه وکړه. کوم ټکي توري (لفظونه) چې زمونږ د خولو نه ووځي نو هغه چرته ځي نۀ، بلکې په یو لامتناهي ځائے کښې خوندي کېږي او په خپل وخت به مونږ ته بیا راستنېږي. د یو انسان درد مونږ ټول دردمن کولے شي، د یو سړي خوشحالي شاید د ټولو په مخونو موسکا خوره کړي.

۲۷. تۀ کۀ ښۀ وا ئې او کۀ بد، په څۀ نه څۀ لاره به بېرته بیا تا ته راستانۀ شي. لۀ دې کبله کۀ څوک ستا په اړه بد خیالات لري او تۀ هم داسې وکړې نو معامله به لا خرابه شي. تۀ به د یوې بدې انرجۍ په نۀ ختمېدونکي ګردش کښې ګېر شې. د دې په ځائے د هغه بنده په اړه تر څلوېښتو ورځو ښۀ سوچ کوه او ښۀ وایه. په څلوېښتمه ورځ به هر څۀ بدل شوي وي، ځکه چې په تا کښې دننه به هم بدلون راغلے وي.

۲۸. ماضي یوه تشریح ده، مستقبل یو سراب دے، دنیا د وخت په لاره د یوې نېغې کرښې په شان د ماضي نه تر مستقبل تېرېږي. وخت زمونږ په وسیله په مونږ کښې دننه د نۀ ختمېدونکو دائرو په شکل کښې مزل کوي. د ابد معنا نۀ ختمېدونکے وخت نۀ دے، د وخت "نۀ شتون" (Timelessness) دے. کۀ چرې تۀ ابدي رڼا لیدل غواړې نو ماضي او مستقبل لۀ خپله سره وباسه او په موجوده شېبه کښې ژوند کوه.

۲۹. تقدیر دا نهٔ دے چې کنې ستا د ژوند غوځه پرېکړه لهٔ وړاندې شوې ده. لهٔ دې کبله هر څهٔ قسمت ته پرېښودل او د کائناتو موسیقۍ ته پهٔ فعاله توګه لهٔ خپله ځانه څهٔ نهٔ پېرزو کول د ډېر لوے جهالت نخښه ده. د کائناتو موسیقي هر لور ته خوره ده او د څلوېښتو مرحلو نه جوړه ده. ستا تقدیر هغه مرحله ده چرته چې تهٔ خپله برخه ساز غږوې. کېدے شي تهٔ د موسیقۍ خپله آله نهٔ شې بدلولے خو تهٔ د دغه آلې نه څومره ښه موسیقي راپېدا کوې، دا هر څهٔ ستا پهٔ خپلو لاسونو کښې دي.

۳۰. ریښتینے صوفي داسې وي چې کهٔ څوک پرې تور پورې کړي، بریډ پرې وکړي او یا ئې لهٔ هرې خوا غندنه وشي، بیا هم د خپلو ناقدینو پهٔ اړه لهٔ خولې بده خبره نهٔ وباسي. صوفي الزامونه نهٔ لګوي. کهٔ چرې د بنده خپل ځان نهٔ وي نو ناقدین او مخالفین به لهٔ کومه راځي؟

۳۱. کهٔ چرې تهٔ غواړې چې خپله عقیده پیاوړې کړې نو باید تهٔ خپل باطن نرم کړې، ځکه چې کهٔ تهٔ خپله عقیده لکه د کاڼي مضبوطه لیدل غواړې نو وړومبے باید خپل زړهٔ لکه د بڼکې پهٔ شان نرم او پوست کړې. پهٔ ژوند کښې مونږ ټول پهٔ یوه یا بله لاره د رنځونو، حادثو، تاوان او وېرې ښکار کېږو او د دې مرام دا وي چې مونږ نور هم اخلاص وکړو، نور هم د سخاوت څرګندونه وکړو او نوره مینه وکړو. پهٔ مونږ کښې ځینې خلق دا سبق زده کړي او نرم شي خو نور داسې هم وي چې لهٔ وړاندې نور هم سخت شي.

۳۲. ستا او د خدائے ترمینځ باید څوک هم ونهٔ درېږي. نهٔ اِمامان، نهٔ د کلیسا یا کومې بلې عبادت خانې مُلیان او نهٔ کوم اخلاقي یا مذهبي مشر،

نهٔ وکیلان، نهٔ روحاني مشران او نهٔ ستا خپله عقیده. پهٔ خپلو قدرونو او خپلو قوانینو باور لره خو پهٔ بل چا ئې مهٔ ورتپه. کهٔ چرې تهٔ پهٔ هره عقیده ایمان لرې خو د خلقو زړونه ماتوې نو پهٔ دې کښې هېڅ ښهٔ نشته. د هر رقم بت پرستي نه ځان لرې وساته، ځکه چې دا به ستا تصور خړ کړي. یوائې خدائے د خپل لارښود پهٔ توګه ومنه. ربنتیا زده کړه خو زما ملګریه! لهٔ خپلو ربنتیاو تعویذونه او بتان مهٔ جوړوه.

۲۳. پهٔ دې دنیا کښې هر څوک د څهٔ جوړېدو پهٔ هڅه کښې دے خو دا هر څهٔ لهٔ مرګه وروستو هم دغه شان پاتې شي. باید ستا مرام د نیشت اعلیٰ درجې ته رسېدل وي. ژوند دا نهٔ دے چې د څهٔ د ترلاسه کولو چې تهٔ ارمان لرې، ژوند د نیشت شعور دے چې مونږ پهٔ خپله لار کړندي او سم ساتي.

۲۴. د اطاعت معنا کمزوري یا بزدلي نهٔ ده. اطاعت ماتې خوړلو یا سر ټیټولو ته لاره نهٔ هواروي. د اطاعت ریښتینې طاقت هغه دے کوم چې د باطن څخه راوځي. څوک چې د خدائي جوهر اطاعت کوي نو پهٔ داسې حال کښې به هم د سکون او قرار نه ډک ژوند تېر کړي کله چې ټوله نړۍ دیو مصیبت نه واخله د بل مصیبت پهٔ لور روانه وي.

۲۵. پهٔ دې دنیا کښې مونږ یو شان والے نهٔ بلکې تضادات مخ پهٔ وړاندې بوځي. د کائنات ټول تضادات پهٔ مونږ ټولو کښې دننه موجود دي. لهٔ دې کبله باید پهٔ مونږ دننه عقیده لرونکي د نهٔ عقیده لرونکي سره پهٔ تماس کښې شي او څوک چې عقیده نهٔ لري، هغه باید د هغه خاموشه عقیده لرونکي درک وموي، کوم چې د هغهٔ دننه دے.

۲۶. دا دنیا د بدل پهٔ اصول ولاړه ده. نهٔ د مینې یو څاڅکے او نهٔ د بدۍ یو

داغ پې بدله پاتې کېږي. کهٔ چرې څوک چاته چل جوړوي نو یاد لره چې خدائے ورسره هم دغه معامله کوي. هغه تر ټولو لوے منصوبه جوړوونکے دے. د خدائے د علم نه بهر یوه پاڼه هم رپ نهٔ شي وهلے. د زړهٔ دلنه پهٔ دغه خبره عقیده لره چې خدائے څهٔ هم کوي، ډېر ښائسته ئې کوي.

۲۷. خدائے پاک یو ډېر زیرک ګهړي ساز دے. هغهٔ نظام دومره ښهٔ جوړ دے چې پهٔ زمکه هر کار پهٔ خپل مقرره وخت کېږي. نهٔ یوه دقیقه مخکښې او نهٔ یوه دقیقه وروستو۔ او دا نظام پې لهٔ تفریقه د ټولو لپاره یو شان کار کوي. د هر چا لپاره د مینې خپل وخت دے او د مړ کېدو خپل وخت دے.

۲۸. دا خبره هېڅ کله هم پې وخته نهٔ ده چې تهٔ لهٔ ځانه دا پوښتنه وکړې چې زهٔ کوم ژوند تېروم. آیا زهٔ د دې بدلولو ته چمتو یم؟ آیا، زهٔ د خپل باطن بدلون ته اماده یم؟ کهٔ چرې ستا پهٔ ژوند کښې یوه ورځ هم د تېرې شوې ورځې نه ښه نهٔ وي نو د ترس خبره ده. د هرې نوې شپې او هر ځل د ساه اخستو سره باید یو څوک پهٔ بیا بیا نوے شي او پهٔ یو نوي ژوند کښې د بیا رازېږېدو لپاره یوه لاره ده او هغه ده لهٔ مرګه وړاندې مړهٔ کېدل!

۲۹. اګرچې د یو څیز بېلابېل برخې بدلې شي خو "کُل" تل تر تله یو شان پاتې کېږي، څکه چې لهٔ دې دنیا نه یو غل لاړ شي نو بل پېدا شي او هر ښهٔ انسان چې کوچ وکړي نو د هغهٔ ځائے بل ښهٔ انسان ونیسي. دغه شان یو شے هم هغه شان نهٔ پاتې کېږي، خو پهٔ رښتیا معنا کښې یو شے بدلېږي هم نهٔ.

۴۰. بې له مېنې ژوند په هېڅ حساب کښې نه شمېر لے کېږي. په دې خبره ځان مه زوروه چې ته د کومې مېنې په لټون کښې يې؟ روحاني، مادي، خدائي، دنياوي، مشرقي يا مغربي؟ تقسيم نور تقسيم ته لار هواروي. د مېنې تعريفونه او وضاحتونه نه وي. دا چې څۀ ده هم هغه ده. ساده او سپېځلې مينه د ژوند اوبۀ دي او عاشق د اور روح دے. د کائناتو انداز هاغه وخت بدل شي کله چې اور د اوبو سره مينه وکړي.

and tolerance, where the skilled residents carved out images of the ever –smiling Buddha. Born in the lap of nature and nursed by the nature, Pashtuns lived a simple, hard but comfortable. He was trained only to sing and smile, only to sow the seeds of love to reap peace. He spoke one language and walked one path.

Shaheen Buneri like many others raises numerous questions which he believes have no answers. He walks in dreams to grapple with the harsh realities of Pashtuns but when he wakes up he finds himself sleeping a deep slumber to which Hamza Baba has referred to in one of his couplets. Baba says, I thought my cries would wake my people from their sleep but it dawned upon me that I, myself was sleeping a deep slumber.

He begins his story with Swat and takes readers to remote times and captions every important occasion and event with a beautiful a tapa –three imbalanced liner poetic genres –reflective of our glorious past encompassing everything related to Pashtuns. Everybody knows that a narrative always is based on culture of the people. The strange thing is that Pashtuns disown their indigenous culture and own the borrowed narrative. Shaheen Buneri bemoans this very tragedy of Pashtuns.

The booklet of Shaheen Buneri is a must read for its fluent and interesting style of narration in Pashto.

By **Sher Alam Shinwari**

## A Voice in the Wilderness...

At a first glance, the booklet seems to be a medley of random thoughts but it is a well-connected story from the pen and brain of a young man .There are people who while finding no solution to the problems they are facing with, soon they begin narrating narrate it to others in order to mitigate their sense of being helpless.

But the problems never end, rather they get multiplied. However, a powerful narrative technique gives a new twist to it. True to the great Pashtun poet Khushal Khan Khattak's words- [Born on the day of chaos / I am frequented by an endless unrest], the land of Pashtuns has been the battlefield down the ages.

The ultimate sufferers are the Pashtuns; the beneficiaries are always the faceless monsters. The culture of Pashtun is peace, tolerance and love but still his narrative is being projected to advocate violence and extremism – means 'culture' is indigenous but ' narrative' is borrowed. This unusual phenomenon puts Pashtuns in jeopardy and in a deep identity crisis.

Shaheen Buneri a young restless soul, a poet and journalist is experiencing the same dilemma through which collective consciousness of Pashtuns passing through. He appreciates the unravel beauty of Swat, Malakand, Buneri, Kohistan and Dir valleys. He explores past history and glory of Gandhara civilizations and judges the role of Pashtuns in this region.

Nostalgia takes him deep down in the annals of history where fairies reigned over the highlands, rivers, lakes and plains of Pashtuns for centuries. He envisions the land of Pashtuns as the abode of permanent peace, love